# ځرک

نهم کال شپږمه ګڼه، پرلپسې ۸۳ ګڼه، سنبله ۱۳۹۳ل، شوال المعظم ۱۴۳۵ق، اګست ۲۰۱۴م



## اشنایي با جهاد در اسلام

## په بل میکشاټن دبل اکبرخان ګوزار، سپینه ماڼۍ ولړزوله

## د آزادۍ په معنا آزاد خلک پوهیږي

## باطل نظام او اصلاح کاندید ؟

## د اسرائیلو وحشت، دنړۍ جفا او فاتحه غزه

## له چیریکي جګړې سره دجبهیي ګوزار انګازي !!

# ځرک

## علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه



نهم کال شپږمه ګڼه، پرلپسې ۸۳ ګڼه، سنبله ۱۳۹۳ل، شوال المعظم ۱۴۳۵ق، اګست ۲۰۱۴م


امتياز :

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل ميړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

افغانستان : ۱۸۰ افغانۍ

پاکستان : ۲۴۰ کلدارې

امريکا : ۶۰ ډالره

اروپا : ۶۰ يورو

يوه ګڼه : ۱۵ افغانۍ

۲۵ کلدارې

يادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجمانې وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

پته :

تخنيکي چارې : عابد مجاهد

کابل : دځرک دفتر


srak_111@yahoo.com

سرليك



بسم الله الرحمن الرحيم

# دپغمان دپېښې ترشاپټ لاسونه !!

دامریکااوناټو له اشغال څخه نیږدي ۱۴ کاله پوره کیږي چې په ډیرې سپین سترګی په خپلو ټولو جرمونو اوجنایتونوسترګي پټوي اودخپلې کاذبې میډیاپه توسط په مسلسل ډول نړۍ ته دادروغ صادروي ، چې دافغانستان دمهموبنسټونو اوزیربناوو په جوړولو یې په لسګونه ملیارده ډالرلګولی .

که امریکایان اوغربیان رښتیاهم په خپلو دغودعوو کې رښتیني وي ،نودافغانستان دیوه مهم بنسټ اوزیربنانوم خودې واخلي چې دوی دیوې نیمې لسیزې اشغال په کلونو کې رغولی اوجوړ کړي وي ؟

په ټول افغانستان کې هغه کومه شفاخانه ده چې دافغانانومهموروغتیایي ستونزواو ناروغیوته کماحقه ځواب و ایي اوهغه دې امریکایانو جوړه کړي وي ، زموږ مظلوم هیوادوال دهغومهلکوناروغیوله وجې چې دامریکادزهرجنو وسلو اوباروتو داستعمال له وجې ورته اوښتي ، په افغانستان کې یې ددرملنې لپاره کوم مجهز مرکزوجودلري؟ اوکه موجود وي نوبیاولې هره ورځ په زرګونه دربدره افغانان ګاونډیو هیوادونو لکه پاکستان اوهندوستان ته دملاماتونکو مصارفو په زغملو اونورو زیاتو ناخوالوسربیره هلته مخه کوي اوګاونډیانوهم پرې دانساني تجارت تود بازار جوړ کړی؟.

امریکایانو په افغانستان کې کومه کارخانه اوصنعتي فابریکه اباده کړه ، ترڅو افغانان دګاونډیو هیوادونو له پرسوده وارداتي توکو څخه مستغني وګرځي ؛ په څوارلس کلونو کې دافغانستان په سطحه کوم برښناکوټ ودان کړای شو، دتاجکستان څخه کرایي اوپه سیاسي منتونو بارد برښناڅومزي ځینوښارونوته رسیدلي چې هر لحظه یې دقطع کیدو ویره موجوده وي ، همداډول یوڅو لویې لارې امریکایانو دخپلو جنګي تسهیلاتو په موخه هغه هم دجاپان اوعربي هیوادونو په مالي لګښت یوه څه قیر کړي چې اوس له سره بیرته ویجاړې شوي .

که امریکایان دملي اردو دجوړښت یادونه کوي ، رومبی خو نوموړې اردو هیڅکله دافغانستان دخلکو دمقتضیاتو، اقتصادي توانمندی اوجغرافیوي اړتیاپه تناظر کې نده جوړه شوي ، بلکې امریکایانو دخپلې ناروا جګړې اوشوموموقاصدو په موخه چې زیاتره پوځیان یې دمخدره موادومعتادین دی روزلي اونوم یې پرې افغان ملي اردو ایښي ، همدغه علت دی چې کله امریکایان دیوې میاشتې لپاره پرې لوژستیکي مواد اوډالر بنداووځنډوي ، نو دکابل له اداري دومره چیغې اوکوکارې وخیږي چې ټوله نړۍ راخبره وي ، چې هلی ! اردو مو دبلې میاشتي لپاره معاش اوخوراکي توکي نلري اوپاشل کیدوسره لاس اوګریوان ده ، ایاملي اوافغاني اردو همدغسې وي ؟



هوامریکااوغرب په افغاني ټولنه اوپه خاص ډول په ښاریزو سیمو کې یوه ښکاره لاسته راوړنه لرلي چې هغه دبې دیني ، فحشاوو اودډول ډول فسادونو جرړي زغلول او دګمراهی اوفسق دزرګونو مراکز وفعال ګرځول او دبین المللي مافیا مست روان غوبل دی .

لدې علاوه ، خو هرڅوک ویني ، چې له امریکایي جاسوسانواوټیکه دارانو پرته دعام افغان ولس غربت اواحتیاج کومي درجي ته رسیدلی ، یوه ورځ چې ګوم ګاونډی هیوادپه افغانستان باندې دخوراکي توکو اونور داستعمال وړ اجناس اووسایل بند کړي ، دقیمتیو کچه تر کوم بریده پورته خیږي ؛مونږ له امریکایانواوغربیانو پوښتنه کوو چې ستاسي دلسګونوملیاردو لګښتونواثرات پرته لدې چې دعیاشیواوفحاشیوپه خپرونکو ادارو اودمفسدوباندونوپه ژوندي ساتلوکې کې لیدل کیدای شي، دافغانستان په عمومي اقتصادي حالت اویادملي بنسټونودابادی په کومي برخي کې دلیدلو اوتشخیص وړ دي ؟

څو ورځي وړاندې دکابل په زړه دقرغي په لویه لار په رڼا ورځ څوتنو دولتي کثیفو وسلوالو دعاموخلکو دسوارلی موټر ودرول ، نارینه یې وتړل اووي ډبول او له ښځوسره یې بدفعلی وکړي !!

ددغې علني وحشت اوفحشاپه مقابل کې دکابل تالیځتو چارواکو، اجیرپارلمان او نورو سوونو دبشري ادارو مدعیانو یوه هم یوه مظاهره راونه ویسته او دورستی جنایت په مقابل کې یې جدي غبرګون ونښوداونه هم دکوم غربي هیواد دښځو اونساني حقوقوټیکه دارانوځان وښوراوه چې دقرغي پیښه یووحشت اوانساني جنایت دی .

معلومیږي چې په افغانستان کې امریکااوغرب دهمدغسي پلیدو کړنو سرپرستي کوي اوپه لوی لاس دغه پیښي رامخي ته کوي ، ترڅو له افغاني عفت او غرور څخه غچ واخلي او هم دافغانانو په ذهن اوسوچ کې دغسي جرمونه عادي اوساده وبریښوي .

اوس که دهمدغسي وجدان وژونکو حوادثو اودامریکادپلیدوعزایمو په مقابل کې داسلام سپاهیان اوغازیان توره راباسي اودکفراوګمراهی ژامي ورماتوي ، نوبیا له هر لوري ، درباري مبصرین او امریکانوا روڼ اندي هغه ترهګری بولي اوژر ترژره دکوم ګاونډی هیواد دلاس وهني ټاپه پرې لګوي .

خوامریکااوګوډاګیان یې باید پوه شي چې که دوی هرڅومره دافغان ولس ددیني اوملي اقدارو دبیخکنی او دافغانانو دپاک عفت اوعزت دلوټلو په خاطر په یواوبل نوم دسیسي په کار اچوي ، الله تعالی به یې ځکه شرموي او په سزابه یې رسوي ، چې داسلام دبرحقي لاري په زرهاوو اولکونو سپاهیان اوحامیان توره اوککره په لاس دهیوادپه لویشت لویشت خاوره کې په غورځنګو دي ، څوک په چیریکي اوتکتیکي جهاد بوخت دی ، څوک په تهاجمي اوجبهیي غزاوو ، څوک دامریکایي جنرالانو سیني غلبیلوي اوڅوک یې په څټ خنجر تیروي .

نودقرغي ددلخراشه اودردونکي پیښي عاملین اوترسره کوونکي چې په لوی سر کې یې امریکایان اودکابل اجیررژیم دی ، بایدپه خلاصو غوږونواوروي چې داسلام اوافغاني پټ ساتونکي (مجاهدین اوغازیان ) به دمتعال رب (ج) په نصرت ارومروپوښتنه کوي تاریخي غچ اوانتقام اخلي اومجرمین به یې دروندقیمت اداکوي، (انشاالله تعالی )

# دجبهيي ګوزار انګازي !!

خبیراحمد م

په داسې حال کې چې مجاهدینو د تیرو ۱۴ کلونو په اوږدو کې د اشغالګرو او د دوی د ګوډاګیانو زور او دبدبه تر ډیره ځایه د چریکي جګړې او ورپورې تړلو جهادي تکتیکونو په مرسته اوبه او الله تعالی له همدې لارې د نړیوال استعمار د کبر او غرور مانۍ نسکوره کړه، اوس دادی وینو چې مجاهدینو د چریکي مبارزي ترڅنګ د جبهیي جګړې مرحله هم پیل او د ښمن ته یې له تیرو دریو اونیو راپه دې خوا درانه زیانونه او تلفات وراړولي او پراخي سیمي یې ورڅخه ترګوتو کړي .

د رواني ( اګست ) میاشتې په اوږدو کې د نورستان ولایت اتلو مجاهدینو د نورو فتوحاتو او جهادي لاسته راوړنو ترڅنګ دیوې کامیابې او تاریخي تهاجمي جګړې په لړ کې د نومورې ولایت ترټولو مهمه ولسوالی ( دوآب ) فتح ، لسګونه ګوډاګیان یې پکې مړه او ژوبل ، ډیرئ عسکر یې ژوندي ونیول او هم یې په انبارونو انبارونو لوژستیکي زخیرې ، پریمانه جنګي مهمات ، ګڼ وسایط او ډول ډول سپکي او درني وسلي ولجه کړي.

بله ستره کامیابي د زابل په ولایت کې وه ، چې د نومورې ولایت قهرمانو مجاهدینو له ۹ ورځنیي مسلسلي جګړې ورسته د الله تعالی په خاص عنایت وکولای شول چې د زابل حساسه ولسوالی ( نوبهار ) او شاوخوا سیمي دجبهیي برید په مټ فتح او په مرکز یې د اسلامي امارت سپین سپیڅلی بیرغ ورپوي

که څه هم د ښمن د دغې اوږدې جګړې په ترڅ کې زیاته هڅه وکړه چې د مجاهدینو د بریدونو مخه ونیسي او د جګړې په ورستی ورځ ، ګوډاګي رژیم خوله کندهار او کابل څخه یو لوی پوځي کتار چې په یونیم سل پوځي او لوژستیکي وسایطو او په سوونو عسکرو سمبال وو د جګړې لپاره راولیږه ، خو د الله تعالی په نصرت په دې سربیره چې د د ښمن مجهزه او مغروره فوځي قافله دړې وړې شو ه ، بالاخره ولسوالی هم د مجاهدینو بشپړې سلطي ته ولویده.

دغه راز ، دهیواد په شمال کندوز ، فاریاب اولدې وړاندې په ختیځ ننګرهار د حصارک په ولسوالی کې هم مجاهدینو دتهاجمي بریدونو په توسط دکابل اداري دملي اردو ګڼ شمیر پوځي قطعات له خپل ټول قوت اوتجهیزاتو سره شرمنده او بیرته پرشاتګ ته اړویستل اوهم یې پراخي سیمي ترینه ونیولي.

دګوډاګی اداري دفاریاب والي ، خو آن رسنیوته هم په ډاګه کړه چې نه یوائې دفاریاب دوه ولسوالی دطالبانو ترمستقیم تهدید او سلطي لاندې دي ، که رژیم توجه ونکړي ، نو ممکن دفاریاب اکثره سیمي اوولسوالی دطالبانو لاسته وغورځیږي

درواني میاشتې یوبل کفرلړزونکی خبر اواشغالګروته هیبتناکه پیښه داوه چې یوه افغان غازي دکابل هوايي ډګر ته خیرمه د( بی بی مهرو ) په سیمه کې دامریکایي پوځ دیوه مهم قومندان ( متیو لېګېټ )په مری چاړه راکش کړه او حلال یې کړ، چې الله تعالی نوموړي غازي ته دخلکو په مرسته نجات ورکړ اوقومندان یې دجهنم کندي ته ولیږه.



دچارو دماهرینو په اند ، ددو دریو اونیو په ترڅ کې دمجاهدینو دغه بیساري فتوحات چې هسې مشت نمونه خروار ورته اشاره وشوه ، داډاډ ښئي چې نور داشغالګرو بیړی ډوبه ، شیطاني جالونه اوستراتیژی یې دړې وړې ، دګوډاګیانو روحیه یې مهندمه اوترټولو ښکاره حقیقت اوزیری دا چې دچریکي جګړې ترڅنګ دجبهیي ګوزازانګو هم رنګ اوخوندراوړ او په لږوخت کې ستري بریاوي دمجاهدینو په لږو زیانونو لاسته راغلي.

دکابل ګوډاګي رژیم اوبادرانو به یې تل داویل چې مجاهدین یوائې دخرپ اوترپ جګړه پرمخ بیولی شي ، خو ورستیو فتوحاتو په اثبات ورسوله چې طالبان ددښمن داټکلونو برخلاف اوس جبهیي اوچریکي جګړې دواړه رهبري کولای او له حماسو ډک سنګرونه یې په یووخت کې تاوده اوګرم ساتلی شي. (انشاالله تعالی )

# د ۳۷ هیوادونو

## مستقیم یرغل او د استقلال دعوې!!

عبید ـ خبیر

۹۵ کاله وړاندې د زمري په ۲۸ نیټه ، د افغانانو د بېسارو قربانیو ، فداکاریو او جهدونو ورسته الله تعالی پر دغه اتل او زمریالي ولس د فتحې او استقلال ګټلو شیبې ولورولې او د افغانستان د مشایخو ، روحانیونو او متدینو اسلافو له لوري پاچا امان الله خان وهڅول شو چې له پیرنګي استعمار څخه به د هیواد د حقیقي استقلال ګټلو اعلان کوي.

هماغه وو چې د کابل د عیدګاه په تاریخي جومات کې د افغانستان علماوو او مشایخو امان الله خان ته د خپلواکۍ خول او ویاړ ورپه سر کړ د غازي لقب یې ورته ډالۍ کړ او په ډاګه یې ورته وویل چې د خپلواکۍ اعلان په څرګنده وکړه او د اسلامي شریعت له پلي کېدو مه پرشا کېږه.

په رښتیا هم د زمري د میاشتې ۲۸ نیټه زمونږ د ګران هیواد افغانستان په تاریخ کې د اتلولۍ، مېړانې، حریت او قربانۍ یو ستر یادګاردی چې نمانځنه، یادونه او درناوی یې هر افغان ته خاص ملي ځای او دویاړ مقام لري.

ځکه د نړۍ هغه یوه لویه امپراتوري چې په قلمرو کې یې لمر نه ډوبېده، په همدې ورځ د افغانانو په ایماني ځواک او جهادي متو ماته او وشړېده، زمونږ ننګیالیو اسلافو او مېړنیو نیکونو د پیرنګي طاغوت دری بیلابیل یرغلونه په لوړ شهامت او قربانیو مات او هرځل یې له شکست او رسوایي سره مخ کړل او په پای کې په همدې نیټه اتلو افغانانو په نړیوال ډګر کې انګریزان د خپلې ویاړمنې فتحې عظمت ته سلامي کړل.

په ډېر تاسف سره باید ووایو چې کله د امان الله خان سترګې وغوړېدې او د انګریزانو د یرغل او ګواښ شیبې پای ته ورسیدې نو بیا نو موږ د افغانستان د استقلال د اصلي ګټونکو( علمای کرامو ، مشایخو او متدینو قومي مشرانو ) سره د مشورو ، تفاهم او ګډې تګلارې پرځای چې څنګه یې د حقیقي استقلال پلوشې په افغانستان کې ځلولې او پایداره ساتلې وای او په سیمه کې یې دیوه مسلمان باهیبته واکمن په توګه د افغانستان د جهاد او خپلواکۍ ګټلو اساسات ژوندي او مستحکم ساتلي وای ، بدبختانه بیرته د غلامۍ او اسارت په کنده کې ولوید او اروپاته یې د شپږ میاشتیني سفر په ترځ کې د افغانانو اوږدې او بې ساري قرباني هیرې کړې او چې کله بیرته هیواد ته راستون شو ، بیا هغه غازي او مجاهد امان الله خان نه وو ، بلکې په فکر ، عقیده او ټولو کړو وړو کې یې د بې دینی زهر کډ شوي .

د امان الله خان د ترقی او پرمختګ ړومبني ګامونه او اصلاحات ! داوو چې هغه د کابل په مختلفو سیمو کې پولیس ود رول د محجبو میرمنو له سره یې د

خنجکونو په واسطه چادریانې وغورځولې، د خلکو په مخ کې یې د خپلې مېرمنې له سره ټیکرې وغورځاوه، اروپایي لباس او شپو خولۍ یې په ښوونځیو او دولتي ادارو کې جبري کړې وو ، د ځلورو مېرمنو نکاح یې منع

وګرځوله، هغه په عسکري نظام کې د ږيرې خريل جبري کړل، او تر ټولو مهمه دا چې د اروپا په سفر کې د ملکه ثريا سر لوڅي او د ميني ژوب انځوران په کافي شمېر کې خپاره شول.

د امان الله خان دا اوديته ورته نور يو لړ ناسنجيده او اسلام ضد کړني او اقدامات وو چې په وړاندې يې دافغان ولس دصبراو زغم کاسه ډکه شوه او په خلاف يې ديوې ديني فتوا په ترڅ پاڅونونه راپورته شول، واکمنی يې نسکوره او له هيواد څخه تيښتي ته اړ وګرځيد.

## دهيوادروان حالت او استقلال:

دپخواني شوروي لښکرو دوتلو څخه ۲۵ کاله او دانګريزانو له شکست څخه ۹۵ کلونه تيريږي، خولاهم زمونږ ولس دارامی، سکون او پرمختګ پرځای يوځل بيا د اشغالګرو ترهجوم او اختناق لاندي ګير دي، دا ځل دغه ميړنی ولس د امريکا او سپين سترګي اوسنی برتانيا او ناټو د مستقيم تجاوز شاهد دي او ۱۴ کاله پوره شول چې دغه غربي استعمار د افغان ولس په وژلو، ټکولو، او هضمولو بوخت دي اولايي هم زړه ندی سوړشوي.

خوداشغال په دغه حالت کې هم چې شپه ورځ دامريکااوناټودیرغلګرو پوځيانوله لوري زمونږ بې دفاع ولس په خپلو معصوموووينولمبيږي بياهم دکابل غلام رژيم اوياهغه څوک چې داشغال په راشن چليږي اومخبران يې دي، داستقلال دعوي کوي اوحتی له انګريزانوڅخه دزمري د۲۸ نيتي په موخه دجشنونواونمانځنوتدابيرهم نيسي.

دهيواد اداره اونظام چې تردې کچې ذليل، غلام اوبې ارادي وي چې اول پرې دخپلو ديني اوملي معتقداتوپرځای خپله پرسوده غربي اوامريکايي پروژه تطبيقوي چې تاسي يوتربله انتخابات وکړي چې هرچازياتي رايي وګټلي هغه به حکومت اواداره جوړوي، خوچې کله همدغه پروژه پرمخ ځي اويوکانديدظاهراًکاميابيږي، نووګوری چې باداريي پرې څومره ريخشند وهي دڅوميلونو خلکو رايو ته ددوپيسو ارزښت هم نه ورکوي په هغوملنډي وهي اودامريکادبهرنيو چاروو وزير په وچه بدماشی خپله استعماري طرحه پرې مني.

نواوس دي افغانان ووايي چې په دغسې يو حالت اوغوبل کې چې ۳۷ هيوادونه هلته يرغلګر پوځيان ولري اوامريکا، برتانيااوناټو دافغانستان دځمکي اوفضاټيکه داري په لاس کې اخيستي وي اوهره ورځ لسګونه بې دفاع افغانان په هوايي بمباريو کې له منځه وړي، بياهم څوک ادعاکولای شي چې مونږ دخپلواکی څښتنان يو اويا په همدغسي شرايطوکې مونږ ته داضروردی چې دزمري ۲۸ استقلال ولمانځو، که نه اول بايد دامريکا، برتانيااودناټو دپرتو متجاوزينو ژامي ورماتي کړل شي اوله هيوادڅخه يې تيښتي ته اړکړل شي اوبيا ورسته دحريت اوازادی ناري اوشعارونه ورکړو؟

ځکه داستقلال خو وي داپنځه مهم ټکي چې هغه به له غلامی اوپردي هجوم څخه خوندي وي چې عبارت دي، له فکري استقلال، فرهنګي استقلال، سياسي استقلال، پوځي استقلال اواقتصادي استقلال څخه!!

دکابل چارواکي اوياهغه څوک چې دروان اشغال په حضورکې دخپلواکی ناري وهي، هغوی دې داخبره ثابته کړي چې په دغوپنځو اساساتوکې کوم يو خوندي اودافغانانو اختيار او اراده پکې حاکمه ده؟

که په دغو پنځوکې يوهم دافغانانوپه لاس اوولکه کې وي، له شک پرته چې بيامونږ يوخودمختار اوخپلواک ملک اوهيواديو اوداستقلال دلمانځلوحق لرو؟

# په بل مکناټن (هارلډګریني)

# د بل اکبرخان رفیق الله

## ګوزار د سپینې ماڼۍ برجونه ولړزول !

رحیمی

داګست په پنځمه نېټه دقرغې په پوځي اکاډمۍ کې دهغو مراسمو په غونډه کې چې د اجیرو افغاني جنرالانو په ګډون علاوه پکې امریکایي ،بریتانوي او جرمني جنرالانو او لوړ پوړي پوځي چارواکو هم ګډون لاره دیوه تل اوقهرمان نفوذي مجاهد "رفیق الله" تاریخ جوړونکي برید د سپینې ماڼۍ دکبر اوغرور ټول برجونه ولړزول!!

دپوځي اکاډمۍ د مراسمو په غونډه کې د امریکااوناټو جنرالانو دګډون موخه دا وه څوهغوئ خپلې هغه کرغېړنې اوغرضي مرستې افغان ولس سره دامریکا اوناټو د سترو ښېګڼو او احسان په نوم یادې اوتکرار کړي ،کومې یې چې په تیرو ۱۳ کلو کې په وحشیانه جنګونو کې دافغانانو په وژلو، کړولو او زورولو لګولي.



هو! امریکا او ناټوپه تیرو ۱۳کلو کې افغانان په دروغجنو پلمو ،ډول ډول بهانواوحیلو تیرایستل، په دغو پوځي مراسمو کې دامریکا اوناټو چارواکان د همدي زهنیت په بدرګه شریک ول،څو دیوشمیر اجیرو عسکرو روزنه افغانانوته د خپلو غوره خدمتونو په بڼه وښيي، ګوریځ! امریکا دافغانستان څومره خوشالۍ اوترقۍ غواړي ،دادی دومره شمیر افغانې عسکر یې ورزل!! خو جوته او ښکاره ده چې امریکا افغانستان ته د خپلو استعماري ګټو وټو پسې راغلي، نه دافغانانو دخوشالۍ اوهوساینې لپاره !بیا هم دخلکو په ستر ګو کې خاورې شیندي، چې ګواکې دوئ دافغانانو دخدمت په اراده راغلي!! که هر څوک دا انګیرنه لري ، چې امریکا دافغانستان ژغورلو په نیت راغلي! او غواړي افغانستان یو پرمختللی هېواد شي ، پخپلو پښوېې ودروي، دداسي خلکو په شعور او پوهه ډېر افسوس ! ولې امریکا

غواړي افغانانو ته په ګوړه کې زهر راکړي، په غوړو ،چربو خبرو اوژمنو افغانان له جهاده کینوي ، دمجاهدینو دملاتړ سلنه ټیټه کړي .افغانستان دتل لپاره خپل غلام هېواد کړي.

روښانه ده چې افغانان په دغه ډول ټولو جعل کاریو او تزویرونو پوهیږي ، دامریکا له موخو او ارادو نه په پوره توګه خبردي ، دا وجه ده چې نن ټول ولس دجهاد او مقاومت لور ی نیولی او هم یې خپلې راتلونکې هېلې دازادۍ تر ننګیالیو او مجاهدینو پورې تړلې.

قرغي په پوځي اکاډمۍ کې جوړو مراسمو کې دامریکا یانو ټولې خوارۍ او هیلې هغه مهال په سیند لاهو شوې، چې کله ناڅاپه یوه زلمي افغان عسکر ! دهېواد په ازادۍ مین ځوان ( رفیق الله ) دچا د بد ن رګونو کې چې دازادۍ او خپلواکۍ وینه په غورځنګو وه او ورته د امریکا یانو وحشتونه اوظلمونه له زغم بیرون وو، په ډیره عالي روحیه یې دپوځي مراسمونه په ګټه دخپل ټوپک شپیلۍ دامریکا او ناټو ددرې ستو ریرز تورن جنرال ( هارلډ ګریني) ځیګر ته ونیوه او د الله اکبر په ملکوتي غږ یې تالاردهغه په وینو رنګ کړ او ټول ناست خلک یې هک پک حیران کړل،په لومړي ډز یې هغه نیغ جنهم ته ور ولیږه، بیا یې دناټو ، امریکا او اجیرو افغاني جنرالانو برید وکړ ، چې له کبله یې یو امریکا یې ،یوجرمنی او یو افغان جنرال مرګوني ټپیان شول او نور په لسګونو خارجي او کورني پوځي چارواکي او عسکر یې مړه اوټپیان کړل، دخبرې سرچینو په استناد :وژل شوی درې ستوریز تورن جنرال (هارلډ ګیني) دویت نام جنګ نه وروسته دامریکا دپوځ هغه ترټولو جګ پوړی پوځي دی چې په دغه برید کې وژل شوی.

دافغان زلمي( رفیق الله ) په دې برید دامریکا یې ښکېلاک مغرورو مغزو ته دروند ټکان ورکړ،آن دسپیني ماڼۍ کبرجن برجونه ولړزیدل، دنوموړي په برید جوته شوه چې افغانان دامریکا باداري نه مني ، امریکا اوناټو دا دعوه کوي، چې دوئ هر کال افغانستان کې ۱۲۰ملیارد ډالر مصرفوي او په تیرو دیارلس کلو کې یې ۵۳۷.۸ملیارد ډالر لګولي، څو افغانان د ځان کړي، افغانان تابع کړي ،خو امریکایانو به په دې حیرانوونکي برید ضرور درک کړي وي، که دوئ پنځه واره نور هم دومره درانه لګښتونه وکړي، بیا به هم افغانان د خپلې ازادۍ له مسیر وانه وړي اونه به دامریکا په وړاندې دجهاد اومقاومت نه لاس واخلي، امریکان دا مني چې افغانستان کې ددوئ ۲۱۵۲عسکر وژل شوي اونولس زره شپږ سوه یې ټپیان شوي ، خو دمجاهدینو منابع افغانستان کې دامریکایانو دمړو او ټپیانو شمېره ددینه څو واره لوړه ښیي ، که موږ دلته یوائې دامریکایانو دشمېرنې ارقام اومنو ، بیاهم دنړۍ دیو ائیني ابر قدرت په حیث دامریکا لپاره د شرم او خجالت ځای دی، چې افغانانو ورته په تشو لاسو ۲۱۵۲عسکر وژلي او نولس زره شپږ سوه یې ټپیان کړي، ددیارلس کلن اوږده جنګ وروسته امریکا ونه توانیده چې دمجاهدینو له بریدونو خپل یرغلګر ځواکونه خوندي اومصؤن کړي، په روان جنګ کې دامریکا اوناټو زرهاوو ټانګونه، شوبلې، جنګي هلیکوپترې او جنګي عراده جات هواته پورته شوي او له خاورو سره خاورې شوي، بیسونه او پوځي هډې یې ړنګې بنګې شوي، لکونه ټنه باروت یې کارول شوي او دنورو پوځي توکو زخیرې یې خالي شوي ، تردې پورې چې دناټو ځیني غړې هېوادونه چې افغانستان ته له امریکا سره مله راغلي وو، هغوئ افغانستان کې د نه جبرانیدونکو زیانونو اوتلفاتو په لیدو بیرته پښې سپکې کړي او خپلو هېوادونو ته لاړل او امریکا تنها پاته شوه.



بیا امریکا ددې لپاره چې نړۍ ته په افغانستان کې د ځان د بري په اړه باور ورکړي، افغانستان کې داتتخاباتوپه نامه يې يوه بله رسوا ډرامه پيل کړه، کومه چې تردې مهاله بشپړه شوې نده او نه جوته چې نور وخت به څومره ونيسي.

دکتونکو په وينا: امریکا ۱۳کاله مسلسل دافغانستان لويشت لويشت زمکه په وينو رنګ کړه ، زرګونه انسانان يې پخپلو په وينو کې ورغړول،خو خپلې استعماري موخې ترلاسه نکړای شوې، نن ورځ وينو دافغانستان په سمه اوغر کې جهاد اومقاومت روان دی، ديته په پام په وروستيو کې دامريکا او ناټو د يرغلګرو قواوو قومندان "جوزف ډنفورډ" ديته اړشو او اعتراف يې وکړچې : "افغانستان کې دطالبانو دويم وار واک ته رسيدل شونې دي" دهغه لخوا اعتراف ددې دليل دی چې امريکا او ناټو افغانستان کې له جدي ننګونو او ماتې سره مخا مخ ده او دخپل هغه بد انجام په لور ګامونه اخلي ،له کوم سره چې ورلاندي په ويت نام کې مخامخ وه.

په ۱۹۷۰ز کې دامريکا دهغه مهال ولسمشر " جانسن" پر ضد دويت نام جنګ له کبه قهرجن لاريونونه ووتل، په يوه ، يوه لاريون کې پنځوس، پنځوس لکه خلکو ګډون درلود ، هغوئ ولسمشر جانسن ديته اړ کړ چې د واک نه مخکې لاس په سرشي ، دهغه ځای "رچرډنکسن" ونيو ، "نکسن" د خپل ابليسانه امريکايې فطرت ښودو لپاره په يوولس ورځو کې يواځې دويت نام په دوه ښارونو "هنويي" او "هايې فونک" باندې يولک بمونه وغورځول،دهغو بمونو ټول ځواک په "هيروشيما" او "ناګاسا" باندې دتوغول شويو اتومي بمونونه پنځ واره زيات وو، ددې په غبرګون کې ټول ويت نام کې دامريکا پر ضد د غلچکيو بريدونو نه تم کيدونکي لړۍ پيل شوه، له کبله يې دامريکا ټول غرور خاورې



شو،دامريکا زيات شمير پوځيان کمينونو وخوړل، دجګړې په طولاني کيدو دامريکا اقتصاد ته شديد ټکانونه ورسيدل ، ورځ تر ورځې په امريکا دپوځونو سلنه ختله، دامريکا يط پوځيانو د تلفاتو کچه ترحيرانوونکي بريده ډيريده

،پرضد يې دامريكا دننه اوبيرون خلک پورته شول، دنکسن په خلاف لاريونونه ووتل، په ويت نام دامريكا ظالمانه بمباردونو غندنه و شوه، دويت نام ازادۍ جنګياليو نورهم بريدونه نورهم دقيق کړل، دامريكا يې عسکرو روحيات پريوتل ارادې اوحوصلې يې ماتې شوې، بالاخر دامريكا پوځيان دقوماندانانو اوجنرالانو دحکم پرته په سايکلونو، ريړو اوپلي تيښتې ته اړشول، په زرهاوو عسکر ترې تم ورک شول ، ترننه هيچا دهغوئ سراغ ونه کړ ، امريکايان يې په باب تراوسه علم نه لري ، چې په هغوئ څه شول ؟ قبرونه معلوم ندي، په لوی شمېر امريکايې پوځيانو دتيښتې په حال کې خپلې وسلې پلورلې، دخوراکې توکيو او پريښودو بدل کې يې دويت نام ميرمنو ته وسلې کيښودې ، دويتناميانو په هغوئ لاړې تف کولې، ورته يې کنځلې او بدې ردې کولې ، دامريكا عسکرو په ژړا وو ،انګولاوو زاريو اوفريادونو د هغوئ له مونګلو ځانونه ژغورل ، په دې سره دامريكا ټول غرور او دبدبه خاورې شوه، چې ديوه کمزوري هېواد خلکو پخپلو محدودو وسايلو دنړۍ لوی هېواد ته ماتې ورکړه، هغه يې له خپلې خاورې نه ويستلو ته اړکړ ، دپوځي او قتصادي پلوه امريکا يان خوار او زليل شول، کچکول په غاړو اروپا کې ګرځيدل، بريتانيې، فرانسې، استرليا او اسرايل امريكا ته مالي مرستې ورکړې، هغوئ په پښو ودروله، خو امريکا بياهم دخپل عادت اوخصلت نه لاس په سر نشوه، دامريكا دفطري شيطانت په تنه کې د ساه په بيا چليدو يې ، جنګونه شروع کړل، دنړۍ په خپلواکو هېوادو يې منګلې خښې کړې، داسلامي هېوادو دننه يې دخپلواکۍ ساتونکي حکومتونه نسکورکړل، داسلامي هېوادو نو ولسمشران يې ووژل، دنړۍ ديواځيني ستر ځواک په کيدو ، په افغانستان يې يرغل راوړ، بغداد يې اشغال کړ ، ليبيا يې قبضه کړه، په سوريه يې بمباردونه و کړل، په غزې يې داسرايل دملاتړ لپاره څو واره وحشيانه يرغلونه وکړل، په لکونو مسلمانان يې شهيدان اوټپيان کړل، په دې ټولو کې افغانستان دامريكا لپاره له ويت نام وروسته هغه وياړلی هېوادشو چې امريكا پکې دهغسې شکست او خجالت سره مخامخ ده څنګه چې هلته مخامخ وه ، افغانستان کې دامريكا ټول زور اوبه شو، داګست په پنځمه نيټه د پلازمينې په لويديځ د قرغې په پوځي اکاډمۍ کې له ويت نام وروسته دامريكا يې د درې ستوريز تورن جنرال هارلډ ګيني مخامخ ويشتل او دهغه وژنه هغه ستر تاريخي افتخار اوویاړلې کارنامه ده چې ددې هېواد راتلونکي نسلونه به پرې تر پيړيو پيړيو پورې وياړي ،دغازي رفيق الله دا كارنامه دغازي اکبرخان په لاس دميکناټن دوژنې تاريخ پيا تکرار کړاو ثابته يې ثابته کړه چې که افغان زلمو ځوانې څو سرو څپو وړې خو ايل شوې نده، اوس هم دننګ يون په بدرګه دميړانې قدمونه اخلي ، نن هم داکبرخان بچي ژوندي دي ،هغوئ دميکنټن دلمسو راغلو لښکروته دسر په کاسه کې اوبه ورکولی شي ،دافغان وياړلې تاريخ پاڼې به ددغسې سرښندونکو فداکارو غازيانو حماسې او کانامې ستايې او در اتلونکو نسلونو دقربانۍ اوفداکارۍ روڼ مشال وي او غليم ته به دشرم نه ډک پيغور پاته وې... انشاء الله

لاتراوسه يې ماغزه په قرار ندي
چاچې ماسره وهلی سر په سنګ دی



# آشنایی با جهاد در اسلام

پرسش(۱): معنی «جهاد» چیست ؟

پاسخ: «جهاد» یعنی با کوشش و جدیت تمام و مسلحانه با کفار جنگیدن یا معاونت و همکاری با جنگجویان در راه خداوند متعال در تمام موارد ضروری و لازم برای سربلندی دین الله رب العزة و حفاظت مسلمانان مظلوم.باید این جنگ با کافرانی صورت گیرد که دعوت اسلامی به آنها رسیده و آنان دعوت را نپذیرفته اند یا با کسانی که به مسلمانان حمله آورده اند. این جنگیدن «جهاد» نام دارد. (اطاعت امیر جماعت جهادی در هر شعبه جنگ با کفار «جهاد» به شمار می رود(.

پرسش(۲) : حکم «جهاد» در چه زمانی نازل شده است ؟

پاسخ: حکم« جهاد » در مدینه ی منوره در سال دوم هجری نازل شده است.

پرسش (۳ ):اولین آیه ای که در مورد «جهاد» نازل شده کدام است ؟

پاسخ: اولین آیه در مورد جهاد این آیه ی سوره ی حج است:

أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ حج/۳۹

ترجمه: اجازه (دفاع از خود ) به کساني داده مي‌شود که به آنان جنگ (تحمیل ) مي گردد ، چرا که بديشان ستم رفته است ( و آنان مدّتهاي طولاني در برابر ظلم ظالمان شکيبائي ورزيده‌اند و خون دل خورده‌اند ) و خداوند توانا است بر اين که ايشان را پيروز کند.

پرسش (۴ ): به چه جهادی «غزوه» می گویند ؟

پاسخ: به جهادی که پیامبر اکرم (صلی الله علیه و سلم) شخصا شرکت جسته اند ، غزوه می گویند.

پرسش (۵): چه جهادی را «سریه» می گویند ؟

پاسخ: لشکری که پیامبر اکرم (صلی الله علیه و سلم) در زمان خودش برای جهاد اعزام نموده و خود در آن شرکت نکرده، به این معرکه ها سریه می گویند.

پرسش (۲): تعداد غزوات چند تا هستند؟

پاسخ: پیامبر اکرم (صلی الله علیه و سلم) در ۲۷ جنگ شرکت کرده و بنابراین تعداد کل غزوات ۲۷ می باشد. در بعضی روایات کمتر و در بعضی بیشتر ذکر شده است.

پرسش (۷): تعداد سریه ها در زمان پیامبر خدا (صلی الله علیه و سلم) چند بوده اند ؟

پاسخ: در زمان پیامبر خدا (صلی الله علیه و سلم) **۵۲** سریه به وقوع پیوسته است. روایات دیگری هم در این مورد وجود دارد.

پرسش(۸ ): حکم «جهاد» چیست؟

پاسخ: یکی از فرایض اسلام و از مهمترین عبادات است.

پرسش(۹ ): حکمت «جهاد» چیست؟

پاسخ: الله تعالی در قرآن مجید حکمت «جهاد» را چنین بیان کرده است: اگر «جهاد» نباشد، بر روی زمین فساد برپا خواهد شد و عبادتگاه ها منهدم کرده می شوند و اگر بوسیله ی جهاد افراد ظالم و سرکش نابود نشوند، فتنه و فساد روی زمین را فرا خواهد گرفت و کفار سرکش عبادتگاههای مسلمانان را منهدم می سازند و مسلمانان را از بین خواهند برد. به وسیله ی جهاد تمام فتنه ها سرکوب خواهند شد. امنیت، آرامش، عدل و انصاف گسترش می یابد و نظام الهی و دین الله سربلند و غالب خواهد شد.

پرسش(۱۰): آیا قبل از پیامبر اسلام (صلی الله علیه و سلم) دیگر انبیاء علیهم السلام «جهاد» کرده اند؟

پاسخ: بلی، قبل از پیامبر اسلام (صلی الله علیه و سلم) چندین پیامبر دیگر «جهاد» کرده اند و پیروان آنان با همراهی آنان از جهاد بهره گرفته اند.

پرسش(۱۱): کدام پیامبر بود که در زمان کودکی اش یک پادشاه کافر ظالم را به قتل رساند؟

پاسخ: آن پیامبر حضرت داوود علیه السلام بود که در زمان کودکی اش پادشاه کافر ظالم جالوت را به قتل رساند.

پرسش(۱۲): کدام پیامبر بود که قوم خود را به طرف جهاد دعوت می کرد، اما آنان سرپیچی کردند؟

پاسخ: حضرت موسی حکم خداوندی «جهاد» را برای قوم خود بیان کرد اما آنان گفتند: تو و پروردگارت بجنگید ما اینجا نشسته ایم!

پرسش(۱۳): کدام پیامبر بود که نیت کرده بود اگر خداوند متعال به او صد فرزند عطاء کند آنان را مجاهد می سازد؟

پاسخ: آن پیامبر حضرت سلیمان علیه السلام بود.

پرسش(۱۴): در کدام آیه ی قرآن کریم حکم «جهاد» اعلان شده است؟

پاسخ: آن آیه در سوره بقره جزء دوم قرار دارد و این است:

(كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ وَعَسَى أَن تَكْرَهُواْ شَيْئاً وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَعَسَى أَن تُحِبُّواْ شَيْئاً وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ وَاللّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ. بقره/۲۱۶)

ترجمه: جنگ بر شما واجب گشته است، و حال آن كه (بنابه سرشت انساني) از آن بيزاريد، ليكن چه بسا چيزي را دوست نمي‌داريد و آن چيز براي شما نيك باشد، و چه بسا چيزي را دوست داشته باشيد و آن چيز براي شما بد باشد، و خدا (به رموز كارها آشنا است و از جمله مصلحت شما را) مي‌داند و شما (از اسرار امور بي خبريد و مصلحت خود را چنان كه شايد و بايد) نمي‌دانيد

پرسش(۱۵): معنی قتال چیست؟

پاسخ: قتال یعنی جنگ با دشمنان در راه خداوند متعال برای اعلای کلمه و دین الله تعالی.

پرسش(۱۶): «جهاد» رحمت است یا فساد؟

پاسخ: «جهاد» رحمتی بسیار بزرگ از طرف الله تعالی برای همه ی انسانهاست.

پرسش(۱۷): «جهاد» برای مسلمانان چگونه موجب رحمت است؟

پاسخ: بوسیله ی «جهاد» محبت و قرب الهی نصیب مسلمانان می گردد. و نعمتهای زیادی که الله تعالی وعده فرموده، به مجاهدان خواهد رسید. همچنین بوسیله ی جهاد خلافت بر روی زمین نصیب مسلمانان خواهد شد و اموال غنیمت از سوی کافران به مسلمانان خواهد رسید که وضعیت معیشتی آنها بهتر خواهد شد.

پرسش(۱۸): «جهاد» برای کفار چگونه رحمت است؟

پاسخ: «جهاد» برای کافران از این جهت رحمت است که چه بسا به وسیله ی جهاد آنان از ظلمت کفر نجات پیدا می کنند و از دست مسلمانان شکست بخورند و از تمرد خود باز می آیند و بزرگی خداوند متعال را قبول می کنند و بسا اوقات به خاطر زندگی کردن در زیر سایه مسلمانان محبت

اسلام در دل آنان پیدا شود و مشرف به اسلام می گردند. و همچنین کافران به برکت «جهاد» از نظام ظالمانه خویش رهایی حاصل می کنند و در زیر سایه عدل و انصاف حکومت اسلامی با سکون و اطمینان زندگی به سر می برند.

پرسش(۱۹): قبل از جهاد چه چیزی لازم است؟

پاسخ: قبل از جهاد آموزش جهاد و آمادگی نظامی بسیار لازم است. در قرآن مجید الله رب العزه مسلمانان را دستور آمادگی برای جهاد داده است.

پرسش(۲۰): «اعداد» به چه معنی است؟

پاسخ: اعداد(آمادگی برای «جهاد») یعنی ساختن و فراهم آوردن اسلحه و یاد گرفتن کاربرد آن و آمادگی بدنی و یاد گرفتن فنون و تاکتیک های جنگی و ابزار و آلات جنگی و پرورش دادن اسب برای جهاد و مطابق هر زمان فراهم ساختن اسلحه ای که کفار مرعوب شده علیه مسلمانان دست به توطئه نزنند.

پرسش(۲۱): آیا برای آمادگی «جهاد» هم ثواب میرسد؟

پاسخ: از طرف خداوند متعال برای آمادگی به «جهاد» اجر زیادی به مسلمانان می رسد. تا جایی که اگر فردی به نیت «جهاد» اسبی را پرورش دهد، به میزان راه رفتن اسب و پس افکنده و ادرار آن اسب در روز قیامت برای مالک آن ثواب میرسد هر چیزی که به قصد آمادگی جهاد نگهداری شود همین حکم را دارد.

پرسش(۲۲): دعوت جهاد چه اهمیتی دارد؟

پاسخ: الله تعالی به پیامبر خود حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) دستور داده که جهاد کن و ایمان داران را هم بر این کار تشویق کن، از آنجایی که جهاد کاری مشکل است، نفس و شیطان انسان را از این عمل بزرگ باز می دارند. بنابراین برای جهاد خوب باید دعوت داد تا این جذبه و احساس در دعوت دهندگان و شنوندگان زنده شود.

پرسش(۲۳): مسلمانی که «جهاد» می کند و به دست دشمن کشته میشود، به او چه می گویند؟

پاسخ: هر مسلمانی که جهاد می کند و از دست دشمن کشته می شود به او «شهید» می گویند.

پرسش(۲۴): «شهید» چه فضیلتی دارد؟

پاسخ: الله تعالی در قرآن مجید می فرماید: شهیدان را مرده نگویید، بلکه آنها زنده اند. در حدیث شریف آمده که الله تعالی شش نعمت به شهید عطا می کند ۱- هنگام ریختن اولین قطره ی خونش، تمام گناهانش بخشیده می شود و منزل و جایگاه بهشتی اش را به او نشان می دهند. ۲- از عذاب قبر محفوظ می ماند. ۳- از هول و هراس بزرگ روز قیامت در امان خواهد بود. ۴- بر سرش تاج عزت نهاده می شود، تاجی که یکی از یاقوتهای آن از دنیا و آنچه که در آن است، بهتر است. ۵- هفتاد و دو زن بهشتی که چشمانی بزگ و گشاده دارند به عقد او در خواهند آمد. ۷- برای هفتاد نفر از خویشانش شفاعت خواهد کرد.

پرسش(۲۵): آرزوی شهادت چطور است؟

پاسخ: هر مسلمانی باید آرزوی شهادت نماید و برای آن به درگاه خداوند متعال دعا کند. پیامبر خدا (صلی الله علیه و سلم) آرزوی بار بار شهید شدن در راه الله تعالی را کرده است.

پرسش(۲۲): مسلمانی که در جهاد شهید نشد به او چه می گویند؟

پاسخ: عموما او را غازی می گویند. هر کسی که «جهاد» می کند به وی غازی می گویند، ولی عموما این واژه بر کسی اطلاق می شود که پس از «جهاد» کردن در میدان «جهاد» زنده برمی گردد و شهید نمی شود.

پرسش(۲۷): مالی که مسلمانان در میدان «جهاد» از کافران به دست می آورند، به آن چه می گویند؟

پاسخ: به آن مال غنیمت گفته می شود.

پرسش(۲۸): مال غنیمت چه مالی است؟

پاسخ: مال غنیمت مالی بسیار پاکیزه است، الله تعالی بر پیامبرش حضرت محمد (صلی الله علیه و سلم) همین مال را

پسند نموده و پیامبر خدا (صلی الله علیه وسلم) در مدینه ی منوره از مال غنیمت استفاده نموده است و فرمود: برای مسلمان پاکیزه ترین مال، مال غنیمت است.

پرسش(۲۹): فرق میان مال غنیمت و مال فیء چیست؟

پاسخ: مالی که پس از نبرد با دشمنان به دست آید آن را مال غنیمت می نامند و اگر در میدان«جهاد» کافران در مقابله با مسلمانان بدون جنگ اسلحه را بزمین گذاشته تسلیم شوند، مالی که ازآنان به دست میآید، مال فیء گفته می شود.

پرسش(۳۰): مسلمانان در میدان«جهاد» چگونه برزمند؟

پاسخ: دستور خداوند متعال است: ای ایمان داران هنگامی که با کافران می جنگید باثبات قدم بجنگید و برای ثابت قدم ماندن، الله تعالی را بسیار یاد کنید.

بنابراین در«جهاد» با ثبات قدمی مستحکم باید جنگید و در این لحظات الله تعالی را بسیار باید ذکر کرد؛ چون از ذکر الله توانمندی نصیب می گردد و خوف دشمن از دل بیرون می رود.

پرسش(۳۱): آیا فرار از میدان«جهاد» جایز است؟

پاسخ: در میدان«جهاد» به دشمن پشت کردن (فرار کردن) گناهی بزرگ است. در قرآن مجید آمده کسی که در میدان«جهاد» فرار کند مورد خشم و غضب الله تعالی قرار می گیرد. البته اگر پشت گرداندن به عنوان تاکتیک و مصلحت جنگی باشد که می خواهد به لشکر اسلام بپیوندد یا دوباره از پشت به دشمن ضربه وارد کند، اشکال ندارد و با این کار گنهکار نمی شود.

پرسش(۳۲): در زمان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) چند صحابه شهید شده است؟

پاسخ: در زمان پیامبر خدا (صلی الله علیه و سلم) از صحابه ی کرام (رضوان الله علیهم) **۲۵۹** نفر شهید شده است.

پرسش(۳۳): در زمان پیامبر خدا (صلی الله علیه و سلم) در میدان«جهاد» چه تعداد کافر کشته شده است؟

پاسخ: در زمان پیامبر خدا (صلی الله علیه و سلم) در «جهاد» **۷۵۹** کافر کشته شده است.

پرسش(۳۴): رباط به چه می گویند؟

پاسخ: نگهبانی مرزهای اسلامی یا حفاظت از لشکر مسلمانان را رباط می گویند.

پرسش(۳۵): فضیلت رباط چیست؟

پاسخ: رباط عملی بسیار پر فضیلت است الله تعالی در قرآن مجید به آن حکم کرده است و پیامبر اسلام (صلی الله علیه و سلم) فضیلت بیشمار برای آن بیان فرموده است. مجاهدی که عمل رباط را انجام می دهد، ثواب اعمال تمام کسانی که پشت سر او مانده اند، به او می رسد. و آتش دوزخ به چشمانی که در نگهبانی برای جهاد بیدار بوده اند، نمی رسد. نگهبانی یک روز از دنیا و ما فیها بهتر است.

پرسش(۳۶): یک نام پیامبر خدا (صلی الله علیه و سلم) نبی السیف است.معنی آن چیست؟

پاسخ: نبی السیف یعنی پیامبر شمشیر.

پرسش(۳۷): چرا پیامبر اسلام (صلی الله علیه وسلم) را نبی السیف می گویند؟

پاسخ: پیامبر اسلام (صلی الله علیه وسلم) فرمود: «الله تعالی مرا همراه به شمشیر فرستاده است» چون پیامبر خدا (صلی الله علیه وسلم) به وسیله ی شمشیر کافران سرکش را از بین برده و با این کار مردمان فرصت و امکان نزدیک شدن به اسلام پیدا کرده اند و برای جامعه ی بشریت امنیت و سکون مهیا گشته است. به همین جهت پیامبر گرامی (صلی الله علیه وسلم) را نبی شمشیر می گویند. منظور از شمشیر «جهاد» است. یعنی«پیامبر جهاد». الله تعالی به پیامبرش توانایی جهاد را عطاء فرمود تا احدی توان مقابله با دعوت ایشان را نداشته باشد.

پرسش(۳۸): پیامبر اسلام (صلی الله علیه وسلم) فرمودند: «من نبی الملاحم هستم» معنی آن چیست؟

پاسخ: نبی الملاحم به معنی پیامبر جنگها، ملحمه به جنگهای بزرگ و زیاد می گویند. پیامبر را به این خاطر پیامبر جنگها می گویند که در زمان ایشان چنان «جهاد» شده که قبل از آن نشده بود. و این «جهاد» در امت او تا قیامت ادامه دارد. خود پیامبر اسلام (صلی الله علیه وسلم) در جنگهای بزرگ جنگیده و در زمان او کسی شجاعتر از ایشان نبوده است.

پرسش(۳۹): «جهاد» نسبت به دیگر اعمال دینی از چه جایگاهی برخوردار است؟

پاسخ: «جهاد» نسبت به دیگر اعمال دینی برترین عمل است؛ زیرا در «جهاد» جان و مال فدا می شود که در دیگر اعمال فدا نمی شود. از این جهت «جهاد» از همه ی اعمال افضل است و از جهتی دیگر «جهاد» محافظ همه ی اعمال است و این یکی دیگر از دلایل برتری جهاد است.

پرسش(۴۰): یک صبح یا یک شام گذراندن در راه «جهاد» چه فضیلتی دارد؟

پاسخ: در حدیث شریف آمده: «یک صبح یا یک شام گذراندن در راه «جهاد» از دنیا وآنچه در آن قرار دارد افضل است.

علما در توضیح این حدیث می نویسند: اگر تمام مال و دارایی دنیا به کسی داده شود و او این همه ی مال و دارایی را در اطاعت الله تعالی خرج نماید باز هم این اجر با اجر کسی که یک صبح یا یک شام در «جهاد» گذرانده، برابر نیست.

پرسش(۴۱): «جهاد» در چه زمانی فرض قرار می گیرد؟

پاسخ: زمانی که کفار بر مسلمانان حمله کنند [۱]. یا زنان و فرزندان مسلمان را اسیر نمایند یا در میدان جهاد صف مسلمانان با صف کافران در مقابل همدیگر قرار گیرد یا خلیفه مسلمانان، مردم را برای «جهاد» فرا خواند، در تمام این صورتها «جهاد» فرض عین قرار می گیرد.

پرسش(۴۲): معنی فرض عین چیست؟

پاسخ: معنی فرض عین این است که «جهاد» بر هر مسلمان فرض قرار می گیرد و با انجام دادن برخی، از ذمه ی دیگران ساقط نخواهد شد.

زمانی که «جهاد» فرض عین قرار می گیرد، اجازه از والدین یا بدهکار از طلبکار یا غلام از آقا یا خادم از مالک لازم نیست.

پرسش(۴۳): آیا «جهاد» نکردن گناه دارد؟

پاسخ: پیامبر اسلام (صلی الله علیه وسلم) فرمودند: «کسی که «جهاد» نکند و شوق «جهاد» و اراده ی «جهاد» در دل نداشته باشد، بر شاخه ای از نفاق خواهد مرد.«

در حدیث دیگری آمده: «کسی که «جهاد» نکند و یا اسباب و وسایل مجاهدی را تهیه نکند و یا به خانه ی مجاهدی (در نبود او) به خوبی رسیدگی ننماید، خداوند متعال او را قبل از آمدن قیامت به مصیبتی دردناک گرفتار خواهد کرد.

پرسش(۴۴): در «جهاد» اگر مسلمان زخمی شود، چه ثوابی دارد؟

پاسخ: زخمی شدن در «جهاد» دارای ثواب زیادی می باشد. در حدیث شریف آمده است: «شخص مجروح در «جهاد» در روز قیامت با شکلی می آید که رنگش رنگ خون است و بویش بوی مشک است.«

پرسش(۴۵): کسی که برای جهاد بیرون بیاید ودر راه فوت کند آیا به او اجر می رسد؟

پاسخ: هر مسلمانی که به نیت «جهاد» بیرون بیاید و در راه فوت کند یا از سواری به پایین بیفتد یا بر اثر نیش حیوانی گزنده بمیرد برای او وعده ی بهشت آمده است.

پرسش(۴۶): کسی که در «جهاد» مال خرج کند، چه ثوابی دارد؟

پاسخ: در حدیث شریف آمده، پیامبر خدا (صلی الله و سلم) فرمودند: «هر کس اسباب و وسایل مجاهدی را تهیه کند، گویا جهاد کرده است و کسی که مال برای جهاد بفرستد و خود در خانه اش بماند، در عوض هر درهمی برابر با هفتصد درهم پاداش به او می رسد و کسی که خودش برای جهاد بیرون بیاید، چیزی که در این راه خرج می کند در عوض هر درهمی برابر با هفتصد هزار درهم پاداش به او می رسد و الله تعالی برای هر که بخواهد، چند برابر اجر می دهد.

پرسش(۴۷): بهترین «جهاد» کدام است؟

پاسخ: در حدیث شریف آمده است بهترین جهاد آن است که اسب مجاهد پی کرده شود و خون مجاهد ریخته شود. (یعنی شهید شود.

پرسش(۴۸): تیر اندازی و شلیک گلوله به طرف دشمن چه ثوابی دارد؟

پاسخ: کسی که به طرف دشمن تیری شلیک کند آن تیر به دشمن اصابت کند یا نکند او را اجر آزاد کردن یک برده می رسد. در حدیثی آمده: الله تعالی در ازای یک تیر سه نفر را به بهشت می برد. اول کسی که تیر را به نیت ثواب ساخته است، دوم تیر انداز، سوم کسی که تیر بدست تیر انداز می دهد.

پرسش(۴۹): در «جهاد» کشتن کافر چه ثوابی دارد؟

پاسخ: پیامبر خدا (صلی الله و سلم) فرمودند: «کافر و قاتل او هیچگاه در جهنم جمع نمی شوند». یعنی کافر که یقینا به دوزخ خواهد رفت اما قاتل (مسلمان) او به بهشت می رود.

پرسش(۵۰): هنگام بیرون رفتن برای «جهاد» چه نیتی باید داشت؟

پاسخ: هنگام بیرون رفتن به طرف جهاد نیت رضای الله تعالی و سربلندی دین او باید کرد. هرگز به نیت جمع آوری مال و ثروت یا کسب لقب قهرمانی نباید رفت.

(سایت، نوگراه، سنت)

## ماشـــــومان مـــــه خجـــــالتوئ!

شاید تر اوسه به له ډېرو داسې ماشومانو سره مخ شوې یاست چې کله تاسو ترې پوښتنه کوئ دوی د خپلو والدینو تر شا پټیږي او تاسو ته د مخامخ کېدو جرآت په ځان کې نهویني. په علت یې پوهیږئ؟

ارواپوهان وایي، دغه شان ماشومان د مور و پلار له منفي کړنو متاثره وي او پدې حالت کې یې دوی تر هر چا ډېر رول لري، ورپسې ښوونځي ناسم دودونه او کارونه هم خپله برخه لري.

ارواپوهان ځینې لارې چارې بیانوي چې په اساس یې والدین کولای شي له دغه حالت څخه خپل ماشومان وژغوري.

په کورنۍ کې کله هم له خپلو ماشومانو سره داسې چلند مه کوئ چې هغوی ځانونه پردي او تاسو د خپل ځان په مقابل کې په مورچل کې احساس کړي، ځکه همدغه څه لومړنی ګام دی چې ستاسو ماشومان خجالتي او بیا به کله هم د مشرانو په مخ کې خپل نظر بیان نه کړای شي.

دغه حالت نه یوازې د ماشومانو اوسنې حالت تهدیدوي، بلکې په لویوالي کې هم ستاسو بچیان پخپل نفس د بې باورۍ او کم جرآتۍ په رنځ اخته کوي او بیا به په ښوونځي او پوهنتون کې هم خپل نظر بیان نه کړای شي.

له دې حالت سره د مقابلې لپاره له لاندې لارو چارو ګټه واخلئ:

سپک چلند مه کوئ:

کله چې تاسو خپلو ماشومانو سره سپک چلند کوئ، د هغوی خبرې نه اورئ، هغوی کم ګڼئ، نو همدلته ده چې خجالتیږي او دا کار یې روحیات ځپي.

د دا ډول ماشومانو نښه دا وي چې کله په مجلس کې ناست وي سترګې یې په ځمکې پورې ګنډلې وي او کله هم جرآت نشي کولای له تاسو سره خبرې وکړي.

له دوی چې تاسو وپوښتئ او یا یې مجبوره کړئ، نو اېله په اېله درته یو څو خبرې وکړي او نور تل هڅه کوي د مور و پلار شاته پټ شي.

ماشومانو ته وخت ورکړئ:

له ماز پګر وروسته معمولاً خلک وزګار وي، نو که غواړئ خپل ماشومان له دغه حالت څخه وباسئ، نو چکر ته یې له ځانه سره بوځئ او له هغوی سره وخت تېر کړئ. دا کار ددې باعث ګرځي چې ماشوم مو د زړه خبره تاسو ته وکولای شي، معنوي تکیه ګاه یې قوي شي او ورته ثابته شي چې تاسو ورته ارزښت ورکوئ.

مېلمستیاوې او غونډې:

ددې لپاره چې ماشوم مو له دې حالته وباسئ، نو په مېلمستیاوو او غونډو کې یې له ځانه سره بیایئ. ډېری کسان پدې شرمیږي او یا نه غواړي چې په مېلمستیا کې یې کوچنې زوی یا لور ورسره تر څنګ ناسته وي، خو دې ته یې فکر نه وي چې د هغوی راتلونکې او جرآت له همدغو ناستو سرچینه اخلي.

خپلو ماشومانو ته د جراٰت ورکولو په بهانه هغوی ته مېلمستیاوې په کور کې جوړې کړئ او کله نا کله یې بیرون بوځئ چې په نفس یې اعتماد ډېر شي.

د مشرانو په مخکې مو د ماشومانو نیک او ښه صفتونه بیان کړئ. دا کار ددې باعث کیږي چې ماشومان تشویق شي. ډېری مېندې او پلرونه د خپلو خپلوانو په منځ کې د خپل ماشوم عیبونه بیانوي، مګر دا کار ځکه مه کوئ چې د هغوی معنویت ته زیان اوړي او که یې صفت وشي، نو هغوی مثبته انګیزه اخلي.

د نورو په منځ کې له خپلو ماشومانو د هغوی د خوښې مضمون او نورو په اړه وپوښتئ او تشویق یې کړئ چې ستاسو د مېلمنو او یا د غونډو د برخوالو په منځ کې درته په لوړ اواز د خپلې خوښې مضمون یوه برخه تکرار کړي.

دا کار به یې په راتلونکې کې د خبرو په طرز او انداز هم مثبته اغېزه وکړي او دغه ډله ماشومان بیا په لویوالي کې تر نورو ښه نطاقان او غوره ویناکوونکې ګرځي

# امریکا او د عفوې

# د نړیوال سازمان وروستي راپور...

عبید عزیز

دافغانستان مظلوم ولس دامریکاداشغال له رومبیوور ځوراهیسي ، ټولې دنیاته کوکاري اوناري وهلي چې امریکاپرې ناترسه بمونه غورځوي ، ډرون بریدونه پرې کوي ، زهرجني وسلي پرې استعمالوي اود کورنی خوارځ غړی ددوی په وړاندې شهیدانوي اویاتوري خولی ورپه سر کوي اوخپل وحشي زندانونو ته یې بیایي ، خونړی ، تش په نامه بشري سازمانونواو ګوډاګی میډیاپرې غوږونه مړه او کاڼه نیولي وواوامریکایي موقف اونبض ته یې کتل.

خواوس دادی دامریکااوغرب په ګوتودجوړبنسټ ( دعفوې بین المللي سازمان ) دوه اونی وړاندې په مستندډول داسې یوراپور خپور کړچې په ترڅ کې یې دامریکاله وحشتناکي څیرې څخه دمکراوفریب نقاب لیري کړ ، دافغانانوپه ګډون یې ټولې نړۍ ته ورپه ګوته کړه چې په افغانستان دولسي وګړوپه پراخه مرګ ژوبله کې امریکایان تردوغوږپورې ملوث اوترډیره ځایه لاس لري .

دعفوې نړیوال سازمان په خپل کره راپور کې وایي چې دتیروپنځو کلونوپه اوږدو کې یواځې دهوایي بمباریوپه قصدي پیښو کې ۱۱۰۰ یوه لس سوه ملکي وګړي چې نیمایي یکې ښځې ، ماشومان دي وژل شوي ، داچې دکورونو دتالاشیواویاهم په نورومواردو کې به څومره افغانان امریکایي عسکروله منځه وړي وي لاڅرګنده نده ،چې ممکن شمیرزرهاوتنوته ورسیږي، راپوروایي چې دعفوې سازمان ډلودافغانستان په سطحه دلسو خونړیوپیښوپه هکله له نیږدې اوهراړخیزه څیړنه کړي اودقرباني شوو خلکو له پاتې غړوسره یې مرکې کړي ، هغوی ټول وایي چې ملکي خلک امریکایان په نښه کوي .

حوریه مصدق؛ چې دنوموړي سازمان دافغانستان دبرخي مسؤله ده وایي زیات دځورټکی دادی چې امریکایان عام افغانان وژني خوپه مقابل کې یې هیڅ ډول معاوضه نه ورکوي اونه هم دغوغمځپلو کورنیوته دازمینه مساعده وي چې دامریکایی عسکروپه مقابل کې کوم امریکایي عدالت ته مراجعه وکړي .

دحوریه مصدق په وینا امریکااوناټوپه افغانستان کې دتیرو ۱۳ کلونوپه اوږدو کې څرګندبشري جنایتونه ترسره کړي چې متاسفانه په ټولویې خوله پټه اوغوږونه کاڼه نیولي اودیته هم چمتوندي چې په اړه یې پلټني وشي

دعفوي داسیادبرخي مسؤل ،ریچارد بنتی وایي چې امریکابایدد دملګروملتونو دامنیت شورادقطعنامي په اساس چې په جګړې کې دملکي خلکوژوندخوندي کړي رعایت وکړي .

بنتي زیاتوي : افغانستان ته دامریکایي عسکروپه ورتګ زرګونه بې دفاع افغانان ددوی له لوري وژل شوي اوپه لکونوتنه شکنجه شوي چې په مقابل کې یې قرباني شوو اومتاثره کورنیوته هیڅ ډول خساره اومعاوضه نده ورکړل شوي ،دریچارډ بنتي

په قول دامریکا پوځي چارواکي همیشه دخپلو عسکرو په خلاف ورزیو سترګي پټوي اودجرمونو په وړاندې دقضایي پلټونو مخه ډب کوي .

له بلې خوا په کابل کې امریکایي سفیر دعفوې سازمان په راپور کلک غبرګون ښودلی ،هغه یې ناسم بللي اودملکي وګړو عاملین یې طالبان بللي.

ولې حوریه مصدق یې په ځواب کې وایي چې دامریکا دیوه سفیرپه توګه زیات دشرم اوخجالت ځای دی

چې زمونږ په مستند راپور چې هیڅوک ترینه انکار نشي کولای جرح کوي اوناسم یې بولي ، نوموړي سفیر مخاطبوي ، داسمه ده چې دطالبانو په بریدونو کې هم ملکي افغانان وژل شوي خوهغه ۱۱۰۰ سوه تنه چې مونږ یې په اړه ژوره پلټنه کړې دوی صرف دامریکایانو په هوایي بمباری کې هدف ګرځیدلي اوله منځه وړل شوي ، چې په هغو کې دطالبانو هیڅ ډول دخل اولاس نشته .!!

که څه هم هرڅوک په دې پوهیږي اودتیرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې ورته لکه لمر روښانه شوي چې امریکااوناټو په افغانستان کې په دې سربیره چې بې وزله اوبې دفاع افغانان یې دطالبانو اووسلوالو په نومونو هدف ګرځولي اولوی لوی کلي یې په بل مخ اړولي ، دخپلې استعمار جنګي ماشین دتمرین اوساعت تیری لپاره یې هم دافغانستان په هره سیمه کې په عامو افغانانو اودهغوی په جونګړواوشتمنیو زړه تش کړي اولولپه کړي یې دي .

خو تراوسه دیوې داسې نړیوالې مرجع له لوري چې دمسلمانانو په وړاندې همیشه د امریکااوغرب په ناکردواوجنایاتو یې سترګي پټي کړي ،دافغانستان په اړه یې ورستی راپور بیساری اودلچسپه دی .

دامریکایانو له اشغال راپه دې خوادغسې یومستندراپورچې مخامخ دې دامریکایي پوځ جرمونواوجنایتونو په ګوته کړي اودامریکاله مکارشکل څخه دې پرده پورته کړي ، ندی ترسترګو شوی .

همدادلیل دی چې دعفوې سازمان ورستي مدلل راپورچې په هیڅ قیمت امریکاترینه په نړیوال قضایي میدان کې تیښته نشي کولای له سخت خجالت اورسوایي سره مخ کړي .

له بل لوري دکابل ګوډاګی رژیم هم دعفوې دسازمان په ورستي راپوراندیښنه ښکاره کړې چې مخالف لوري خلاف ورزی یې پکې ندي په ډاګه شوي ، خوپه عین حال کې داخبره مني چې دخارجي قواوو په هوايي بیبنو کې له تیرو ۱۳ کلونوراهیسې ډیرملکي خلک وژل شوي ، چې نه یې کوم نړیوال قضایي اورګان غږ اوریدلی اونه هم مناسبه معاوضه ورکړل شوې ، بلکې دهروژل شوي افغان لپاره یولک افغاني اوټپي لپاره پنځوس زره افغاني ټاکل شوي .

دعفوې نړیوال سازمان ، په نړۍ کې دبشري حقونو دنقض دمخنیوي اوخاتمې په موخه په ۱۹۶۱ کال دیوه بر تانوي وکیل «پیتر بنسون» له لوري دلندن په ښار کې تاسیس او په ۱۹۶۲ کال دعفوې دسازمان په نوم رسماونومول شو.

نوموړی سازمان ، ادعالري چې هدف یې دسیاسي زندانیانوعادلانه محکمه ، داعدام دسزالغوه کیدل ، په زندانونو کې دشکنجواودسیاسي عامه قتلونو مخنیوی اودبشري حقوقودفاع یې له مهمواهدافو څخه دي

دعفوې سازمان وایي چې په ټوله نړۍ کې نیږدې ۲ میلونه غړي لري اولګښتونه یې هم دهمدغو غړو په بسپنواومرستو تمویل اوپوره کیږي .

خوپخواني شوروي اتحاددعفوې سازمان دغرب دجاسوسي جال باله اوترپایه یې پرې نیوکې لرلې .



# اهل سنت والجماعت يا ناجيه فرقه

اتمه برخه

مفتي شاهد حقاني

## د(ما أنا عليه وأصحابی)تشريح :

ښه به داوي چې دحديث شريف ددې فوق الذکر فقرې تشريح او وضاحت پخپله له هغه حديث څخه معلوم کړو ،هغه داسې چې يو پوښتونکې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه وپوښتل، چې پداسې حال کې چې دا امت (٧٣) فرقو اولويو ډلو باندې وويشل شي او اوسنی وحدت يې ټوټه ټوټه شي ،پدې ډلو ټپلو کې چې صرف فرقه ناجيه او هغه ډله چې په حق ده ، کومه يوه ده، نو ده صلى الله عليه وسلم ورته په ځواب کې لا هغه مهال ويلی و ،چې((ما أنا عليه وأصحابی )) ،نوموړی حديث چې( مشکاة المصابيح )رانقل کړی په لاندې ډول دی !وعن عبدالله بن عمرو قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ليأتين على أمتی کما أتی على بنی اسرائيل حذوالنعل بالنعل حتی ان کان منهم من أتی أمه علانية لکان فی أمتی من تصنع ذالک ،وان بنی اسرائيل تفرقت على سبعين ملة وتفترق أمتی على ثلث وسبعين ملة ،کلهم فی النار الاملة واحدة، قالوا من هی يارسول الله قال ما أنا عليه وأصحابی ــ(مشکاة المصابيح باب الاعتصام بالکتاب والسنة ج١ ص٣٠ ).ترجمه :دحضرت عبدالله بن عمرو څخه روايت شوی ،چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

زما په امت به يوه داسې زمانه راشي ،چې په بني اسرائيلو راغلې وه ،داسې لکه يوه پڼه چې له بلې پڼې سره برابره شي ،تردې پورې، چې که په هغوئ څوک خپلې مورته ښکاره راغلې وي (ښکاره يې ورسره زنا کړې وي )زما امت کې به هم داسې وشي ،له شک پرته بني اسرائيل په(٧٢)فرقو ويشل شوي وو ،اوزما امت به په(٧٣)فرقو يا ډلو وويشل شي ،ټولې به دوزخ ته ځي ،مګر يوه فرقه به نه ځي ،صحابوو(رض)ترې وپوښتل چې ای دالله رسوله(ص) هغه به کومه فرقه وي ؟رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: چې په کومه طريقه چې زه او زما اصحاب دي.

همدا سې په يوه بل روايت کې راغلي چې:

عن أنس بن مالک قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "تفترق أمتي على ثلاث وسبعين فرقة کلهن في النار إلا واحدة"،قالوا: وما تلک الفرقة؟ قال: "ما أنا عليه اليوم وأصحابي".

رواه الطبراني في الصغير وفيه عبد الله بن سفيان قال العقيلي: لا يتابع على حديثه هذا وقد ذکره ابن حبان في الثقات. (مجمع الزوائدومنبع الفوائدج١ص٢٣١)

**ژباړه** :حضرت انس بن مالک (رض)فرمايي:چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:چې زما امت به په(٧٣)ډلو باندې وويشل شي ،چې ديوې فرقې څخه علاوه به ټولې فرقې اور کې وي ،دوئ(صحابه کرامو رض )وپوښتل، چې دايوه فرقه به کومه يوه وي (څه صفات به لري )،نو نبی عليه

السلام ورته وفرمايل، چې دا هغه ده (دهغو عقايدو او سنتو پيروي به کوي )چې نن پرې زه او زما اصحاب دي.

دموضوع د لاښه وضاحت لپاره به دځينو منل شويو علماوو اقوال ،دمفتي صاحبانو فتواوې اودلويو فتاوو څخه ځينې حوالې رانقل کړو، څو ترې دموضوع په اړه لاښه معلومات ترلاسه اوددې مسئلې په باب ابهام ورک شي !

مشهور عالم(مفتي زين العابدين کرناپوري )په خپل کتاب (عقايد اهل السنة والجماعة ) کې د (ما أنا عليه واصحابي )شرح داسې کوي:د(ما )کلمې څخه موخه قانون ، شريعت اواسلامي تعليمات دي ،د((أنا ، وأصحابی )) څخه مراد هغه مقدس شخصيتونه دي ،چې ددوئ نه په انسانانوکې مختلف مهارت لرونکي اشخاص پيدا کيږي ،چې سرچينه او منبع يې رسول الله صلی الله عليه وسلم دی ،چې ددې حاصل دادی، چې ،حقه فرقه هغه ده چې بنياد او بنسټ يې دوه شيان وي ،يو حق نظام او بل اتباع دحقو شخصياتو ،پدې دواړو کې چې يو منتفي وي، هغه بايد داهل سنت او ناجيه فرقې دعوی ونکړي ،نومورې ليکي: چې بريلويان يوازې شخصيات پالي اودوئ هم بې لارې دي ،داجتهاد ،تقليد او اجماع له منکرينو سره د شريعت نظام شته خو دا بل بنسټ(مقدس اشخاص ) ورسره نشته، نو ځکه دوئ هم بې لارې دي ،خو د ديوبند دمکتب فکر اهل سنت والجماعت علماوو سره بيا دواړه بنسټه او اساسات شته،يعنې هم اصول شريعت اوهم مقدسه اشخاص ،يعنې دقرآن اوسنت په نوم قانون او دصحابوو(رض)او الجماعت په نوم شخصيتونه هم له ځانه سره ساتي، نو همدا بيا ددې مذکور حديث شريف مصداق دی.

د (دارالعلوم حقانيه په اردو فتاوی اول جلد دباب الفرق الاسلاميه وغيرها )تر بحث لاندې همدا موضوع ،ددې استفتاء په ځواب کې (چې داهل سنت والجماعت مصداق کوم خلک دي او تعريف يې څنګه دی؟) داسې ليکي: اهل سنت والجماعت هغه خلک دي ،چې عقايدو او احکامو يې دقرآن اوسنت سربيره دصحابه کرامو رض مسلک خپل کړی وي اودهغوئ په اقوالو عمل کوي، لما قال العلامة ظفر احمد العثماني (اہل سنت و جماعت وہ مسلمان ہیں جوعقایدواحکام میں حضرات صحابہ کرام رضی اللہ عنہم کی مسلک پرہوں اورقرآن کی ساتھ سنت نبویہ ص کو بھی حجت مانتی اوراس پر عمل کرتی ہوں)

(شيخ احمد الطحطاوي رحمه الله) هم دا اهل سنت والجماعت يا ناجيه فرقه ،نن سبا په اربعه مذاهبو کې منحصره بولي او له مذاهبو څخه وتلو ته دبدعت مترادف وايي،لکه د(الطحطاوي علی الدرالمختار )متن چې د(دارالعلوم حقانيه فتاوی دوهم جلد )کې ديوه مستفتي په ځواب کې داسې را نقل کړی ، چې البته مونږ به يې بې له تصرفه پښتو ژباړه ديوې معتمدې حوالې په پار دلته وليکو !

سوال:جناب مفتي صيب په موجوده زمانه کې دڅلورګونو مذهبونو څخه په غير دکوم نوي مذهب تقليد کول جائز دي که نا جائز؟؟

الجواب: دعلماوو دتصريحاتو په رڼا کې نني وخت کې دڅلورو مذاهبو نه علاوه پر بل کوم مذهب عمل کول جواز نلري ،داځکه چې داسې کومه جزئيه به نه وي پاتي، چې دې اربعه مذاهبو به پرې صراحت نه وي کړی، لما قال العلامة الطحطاوي رح فعليکم يا معشر المؤمنين باتباع الفرقة الناجية المسماة بأهل السنة والجماعة فان نصرته في موافقتهم وخذلانه و سخطه و مقته فی مخالفتهم، وهذه الطائفة الناجية قد اجتمعت اليوم فی المذاهب الاربعة هم الحنفيون والمالکيون والشافعيون والحنبليون و من کان خارجا من هذه المذاهب الاربعة ذلک الزمان من اهل البدعة والنار (الطحطاوي علی الدر المختار ج۴ ص ۱۵۳کتاب الذبائح ).

وړپسې ددې عبارت په لمن ليک کې د(علامه کمال ابن الهمام رح) تائيدي متن هم رانقل شوی ،چې پداسې ډول دی :

قال العلامة ابن الهمام رح :وعلى هذا ما ذكر بعض المتأخرين منع التقليد غير الأربعة لانظباط مذاهبهم وتقييد مسائلهم وتخصيص عمومها ولم ير مثله فی غیر هم الآن لانقراض اتباعهم وهو صحيح (التحرير فی اصول الفقه ص۵۵۲ بحواله فتاوی رحیمیه ج۱۰ص۸۹ کتاب العلم.

حضرت امام شاه ولی الله محدث دهلوي رح په خورا مشهور او مستند کتاب ( حجة الله البالغه ) کې د فرقه ناجيه په باب داسې فرمايي

:اقول الفرقة الناجية هم الآخذون في العقيدة والعمل جميعا بما ظهر من الكتاب والسنة و جرى عليهم جمهور الصحابة و التابعين و ان اختلفوا فيما بينهم فيما لم يشتهر فيه نص ولا ظهر من الصحابة اتفاق عليه استدلالاً منهم ببعض ما هنالك او تفسيراً لمجمله ،وغير الناجية كل فرقة انتحلت عقيدة خلاف السلف او عملا دون اعمالهم .(حجة الله البالغة جلد۱صفحه ۳۱۲).

لنډه ترجمه: زما په نظر ناجيه فرقه هغه ده، چې خپله عقيده او عمل له قرآن ،سنت څخه را اخلي او خپله عقيده هماغسې ورغوي ،چې څنګه جمهورو صحابه وو( رض )او تابعينو (رح ) رغولې ده ،که څه هم ددوئ تر منځ پداسې اجتهادي مسايلو کې سره اختلاف نظر وي، چې په هغې کې نص نه وي مشهور او نه پکې دصحابه وو رض نه اتفاق راغلی وي، دا يا په هغو استدلال وي ،چې ورسره دي او يا دمجمل تفسير وي ،او غير ناجيه فرقه هغې ته ويل کيږي، چې عقايد او اعمال يې له سلفو صالحينو څخه خلاف وي او دهغوئ په منهج نه وي روان.

نوربيا ..........

## د ژوند د ځينو اوصافو نښې...

د لوړ همت نښه دا ده، چې د ځان لپاره يوازې په هغه څه راضي شي چې تر ټولو غوره وي.
د زهد نښه دا ده، چې له دنيا څخه مخ واړوې، په داسې حال کې چې دنيا تا ته مخه کړې وي.
د پرهېزګارۍ نښه دا ده، چې له شبهاتو ځان وساتې.
د سخا او کرم نښه دا ده، چې په هغه څه کې هڅه وکړې، چې خلک يې په اړه نه غږېږي، نه په هغه څه کې، چې د هغوی ترمنځ معمول وي.
د لويوالي نښه دا ده، چې پر حقه لاره ثابت پاتې شې که څه هم چې سترياوې دې زيات شي٩ flower.
د ريښتينولۍ نښه دا ده، چې خبره دې په ډاډمنتيا، وېره، طمع او نهيلۍ کې يو ډول وي.
د حکمت نښه دا ده، چې لومړی په خپله پر هغه څه عمل وکړې چې خلک ورته رابولې.
د نېکو اخلاقو نښه دا ده، چې په خپل کور کې تر ټولو خلکو ښايسته اخلاق ولرې.
د تقوی نښه دا ده، چې له خلکو سره ښې اړيکې ولرې.
د الله تعالی لپاره د غيرت نښه دا ده، چې له هغه چا سره ملګرتيا ونکړې، چې د هغه د حدودو پروا نه کوي.
د تواضع نښه دا ده، چې د کاميابۍ پر مهال پر ځان ونه وياړې.
د استقامت نښه دا ده، چې اخلاقي فضيلتونه دې د شرايطو د بدلون پر وخت بدل نکړې.
د اخلاص نښه دا ده، چې د الله تعالی رضاء ترلاسه کول د خلکو په رضاء او خوښۍ غوره وبولې.
د صبر نښه دا ده، چې خلکو ته شکايتونه ونکړې.
د شکر نښه دا ده، چې د هغه چا په حق کې د نيمګړتيا له امله حياء درشي چې له تا سره يې نېکي کړې.
له خپل بنده سره د الله تعالی د مهربانۍ نښه دا ده، چې سخت کارونه ورته اسانوي، په لږو يې راضي کوي، لرې شيان ورته نږدې کوي او له هغو دردونو يې ساتي چې د زغملو توان يې نه لري.

# محترم قاري صاحب فصيح الدين

## سره مرکه

بدخشان ولايت د افغانستان په شمال ختيځه څنډه کې موقعيت لري، چې لويديځ ته يې د تخار او پنجشير ولايتونه، جنوب ته يې نورستان ولايت او د پاکستان هيواد يوه برخه ختيځ يې د چين هيواد يو څه حصه او شمال ته يې د تاجکستان هيواد پروت دی، بدخشان د افغانستان له سترو ولاياتو څخه شميرل کيږي چې ۴۴۰۵۹ کيلومتره مربع مساحت لري، اونفوس يې د وروستيو شميرنو له مخې اته لکه درويشت زره تنه ښودل شوی دی بدخشان په مرکز فيض اباد سربيره ۲۸ ولسوالۍ يا اداري واحدونه لري.

بدخشان يو له هغو ولاياتو څخه دی، چې د اسلامي امارت جهادي فعاليت په کې خورا ځواکمن دی او ډيري سيمې يې د مجاهدينو تر ولکه لاندې دي، د روان ۲۰۱۴م کال په اوږدو کې دا ولايت د جهادي برياوو له اړخه کمساری و، چې جهادي پيښې پيښې يې بيا بيا په نړيواله کچه خبرجوړونکي شوې، دد ې ولايت د جهادي حال احوال په اړه مو د اسلامي امارت په تشکيلاتو کې د بدخشان د والي قاري صاحب فصيح الدين سره مرکه کړې چې ستاسو توجه ورته را جلبوو.

**پوښتنه**

محترم قاري صاحب ! له هرڅه وړاندې درته هرکلی وايو که لومړی زموږ لوستونکو ته ځان ور معرفي کړئ مهرباني به مو وي ؟

**ځواب**

الحمد لله وحده، والصلوة والسلام على من لا نبى بعده امابعد : تر هرڅه وړاندې تاسو او ټولو لوستونکو ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته، وړاندې کوم.

زما نوم قاري فصيح الدين دی، د مولوي سيف الدين زوی يم، د بدخشان ولايت د وردوج ولسوالۍ اوسيدونکی يم او فعلا د اسلامي امارت په

تشکیلاتو کې دبدخشان ولایت د عمومي جهادي مسؤل یا والي په حیث دنده اجراء کوم.

**پوښتنه**

که په بدخشان کې دمجاهدینو د جهادي وضعیت په اړه معلومات راکړئ، چې په دې ولایت کې دخیبرعملیاتو بهیر څنګه روان دی ؟

**ځواب**

لله الحمد په بدخشان ولایت کې سږ کال جهادی فعالیتونه د هرکله په نسبت په ښه حالت کې قرار لري،تاسو به شاید د میډیا له لارې خبرېږئ چې مجاهدین په مسلسله توګه ستر ستر فتوحات ترلاسه کوي، پراخې سیمې او ولسوالۍ نیسي،ددښمن لویو قواوو ته شکست ورکوي او ددښمن مهم کسان له منځه وړي.

د مجاهدینو د بریا بل اړخ دادی چې په وړاندې یې ددښمن هرډول عملیات له ناکامۍ سره مخ شوي دي، او اوس دښمن په دې پوه شوی چې نور په دې سیمه کې جهادي ځواک له منځه نه شي وړلای نوځکه یې افرادو مورال له لاسه ورکړی او د جهادي حقیقت په درک سره ډلې ډلې مجاهدینو ته تسلیمیږي او مجاهدین ورته د دعوت او ارشاد د پروګرام له لارې د سرامن ورکوي.

په بدخشان ولایت کې که دمشت نمونه خروار په حیث ووایو د جهادي سترو فتوحاتو له جملې یوه مهمه پیښه د یمګان ولسوالۍ مکمله فتحه وه، په دې جګړه کې مجاهدینو په لسګونه حکومتي عسکر او مشران یې له خپلو وسلو سره ونیول او ګڼ شمیر نور مړه او ټپیان شول، په دې جګړه کې ۷ رینجر ۱ ټانګ او لسګونه میله وسلې هم غنیمت کړې.

**پوښتنه**

د بدخشان ولایت په څو ولسوالیو کې دمجاهدینو فعالیت شته که په دې اړه معلومات راکړئ؟

**ځواب**

د بدخشان ولایت په ۱۷ ولسوالیو کې مجاهدین علنا فعالیت کوي، خو هغه ولسوالۍ چې مجاهدین په کې ځواکمن فعالیت لري او اکثره سیمې یې دمجاهدینو تر سلطه لاندې دي ، هغه وردوج، جرم ، یمګان، تګاب ، بهارک ،شهداء او یفتل علیا دي.

دښمن د یادو سیمو دبیرته نیولو لپاره په تیرو څو کلونو کې ډیرې هڅې کړې دي، سږکال یې هم بیا بیا دې سیمو ته پراخې قوې راوستې،خو په هرځل عملیاتو کې دښمن ته درانه زیانونه اوښتي دي او هڅې یې له شکست سره مخ شوي دي، د وروستۍ لارې په توګه دښمن په دې سیمه کې دمجاهدین په خلاف ډول ډول تبلیغاتو ته ملاتړلې او کوښښ کوي په تبلیغاتي جګړه سره خپل نظامي شکست جبیره کړي، خو دښمن په دې برخه کې هم کومه بریا نه ده ترلاسه کړې.

**پوښتنه**

تاسو ددښمن دتبلیغاتو خبره وکړه ،رښتیا هم دښمن د مجاهدینو خلاف خورا دروغجن تبلیغات کوي، مثلا دمجاهدینو په اړه دوی وایي، چې دا مجاهدین نه بلکې قاچاقبر او یا هم دنورو هیوادونو شکمن اتباع دي، کله وایي مجاهدین په اولس کې ځای نلري او یوازې د ټوپک په زور یې په خلکو خان تحمیل کړی دی ، ددغسې تبلیغاتو په اړه تاسو څه ویل غواړئ ؟

**ځواب**

دروغجن تبلیغات او غلط توجیهات دښمن ته ورپاته وروستۍ ناکامه حربه ده چې په فکر کوي په دې سره به مجاهدین متضرر کړي، خو دافکر یې

ځکه بې ځایه دی چې عام خلک مجاهدین په خپلو سترګوویني او پیژني یې چې څوک دي، دکوم ځای دي او څه هدف او مرام لري.

باید ووایم چې دبدخشان مجاهدین ټول دهمدې مؤمن اولس زامن دي، نور ملکونه خو څه بلکې واقعیت دادی چې له موږ سره دافغانستان د نورو ولایاتو مجاهدین هم نشته ځکه هغوی په خپلو ولایاتو کې په جهاد بوخت دي، دا مجاهدین یوازې ددې لپاره راپورته شوي زموږ په اسلامي خاورو د کفارو د صلیبي یرغل مخه ونیسي، د اسلامي خاورې دفاع او مسلمانانو له حریم څخه د محاربو کفارو شړل په هر مسلمان نر او ښځه باندې فرض عین دی، موږ یوازې همدا فریضه اداء کوو، زموږ جهاد فقط او فقط د اعلاء کلمة الله لپاره دی او هیڅ دنیوي یا مادي غرض نلري، موږ مطمئن یو چې مؤمن اولس ته ددې برحق جهاد ماهیت معلوم دی او ددښمن په دروغو به نه دوکه کیږي.

## پوښتنه

په بدخشان ولایت کې د ولس او مجاهدینو ترمنځ اړیکي څنګه دي که په اړه یې معلومات راکړئ؟

## ځواب

د مجاهدینو او اولس ترمنځ رابطه خورا مخلصانه ده، مجاهدین ټول د اولس له منځه راپورته شوي، مجاهدین او اولسي خلک یا سره پلار او زوی دي او یا هم سره ورونه او قریبان، د قرابت په رشتو سربیره د مجاهدینو او اولس ترمنځ د رابطې اوورورولۍ مضبوطه اړیکه د اسلامي اخوت ده، الحمدلله مسلمانان سره ورونه دي او د کفر په وړاندې ټول سره یو لاس دي، بناء اولس په خپل ټول توان سره د مجاهدینو ترشا ولاړ دی، همدا لامل دی چې مجاهدینو په بدخشان کې پایدار مقاومت کړی دی او ددښمن ټولې هڅې له ناکامۍ سره مخامخ شوي دي.



## پوښتنه

څه موده وړاندې دښمن ستاسو او ستاسو د نورو ګڼ شمیر جهادي ملګرو د شهادت خبر له رسنیو نشر کړ، ستاسو په باور له دې څخه ددښمن هدف څه و؟

## ځواب

هو بالکل ما هم له مطبوعاتو واوریدل چې دښمن زما د وژلو په اړه راپورونه خپاره کړل او دایې خپله لویه بریا وبلله، خودادی تاسو وینئ چې

دښمن دروغ ویلي و، حقیقت دادی چې سږکال په بدخشان کې دښمن ته سخت تلفات ورسیدل، دوی هیڅ تصور نه کاوو چې په دې ولایت کې به مجاهدین دومره قوي کیږي او دوی ته به دومره زیات تلفات اړوي، دسږکال په ټولو جګړو کې ددښمن تلفات خورا درانه خو لله الحمد زموږ تلفات بیخي کم او تقریبا په نشت حساب وو.

دښمن ددې لپاره چې په مطبوعاتي ډګر کې ځان بریالی وښیي زما او زموږ دمجاهدینو دشهادت دروغجن افواهات یې خپاره کړل، خو په دې اقدام سره دښمن نور هم ځان رسوا کړ، چې ښایي له دې وروسته یې هیڅوک هم په خبرو باور ونه کړي.

## پوښتنه

د نظامي فعالیتونو ترڅنګ د جهادي فرهنګي فعالیتونو په اړه ستاسو نظر څه دی، او کومې مشورې لرئ، د اسلامي امارت د نشراتو په اړه که څه نظر لرئ لطفا یې راسره شریک کړئ؟

## ځواب

په جهادي بهیر کې نشراتي او فرهنګي فعالیتونه خورا اړین دي، ځکه دښمن په مطبوعاتي او تبلیغاتي ډګر کې خورا پراخ فعالیتونه پیل کړي دي، دوی دمجاهدینو په خلاف ډول ډول غلط معلومات خپروي، شاید د اولس زیاتره برخه هغوی چې مجاهدین په خپلو سترګو ویني په دې تبلیغاتو به باور ونه کړي، خو هغه خلک چې مجاهدین یې نه دي لیدلي او له حقائقو ناخبره دي شاید په هغوی باندې اغیز وکړي او دجهاد او مجاهدینو په اړه یې ذهن غلط جوړ شي.

ددې د مخنیوي لپاره باید د فرهنګي چارو کمیسیون خپلو فعالیتونو ته نوره هم وده ورکړي، د اولس اذهان تنویر کړي، د جهادي داعیې په اړه خلکو ته معلومات ورکړي دکفارو له دسایسو او فریبونو یې خبر کړي تر څو د مسلمان اولس زامن د کفارو له صفه ځانونه راوباسي او دجهادي فریضې دا داء کولو اقدام وکړي.

زه چې ډیر وخت په جهادي سنګرونو کې په نظامي چارو بوخت یم، د مطبوعاتو او مجلاتو د مطالعې لپاره ډیر لږ فرصت لرم، خو بیا هم د فرهنګي کمیسیون نشراتو او فعالیتونو ته د قدر په سترګه ګورم او د الله تعالی له دربار څخه ورته مزید توفیق او موفقیت غواړم.

## پوښتنه

محترم قاري صاحب! که په پای کې دلوستونکو لپاره څه پیغام لرئ هیله ده راسره شریک یې کړئ او که دا هم راته ووایئ چې ستاسو په باور د مجاهدینو د پرمختګ او کامیابۍ راز په څه کې دی؟

## ځواب

زما په نظر د مجاهدینو او عامو مسلمانانو د پیشرفت او سرفرازۍ راز یوازې او یوازې په تقوا، وحدت او الله تعالی، رسول الله صلی الله علیه وسلم او اولوالامر په اطاعت کې دی، که مجاهدین لوړ صفات په ځان کې پیدا کړي بې له شکه به د کفارو په وړاندې کامیاب شي

خپل اولس ته پیغام دادی چې ددښمن فریبونو او دسیسو ته متوجه واوسي، اوس دښمن په دې هڅه کې دی چې د ډول ډول تبلیغات او تورلګولو په توسط مجاهدین بدنام او له اولس څخه پردي کړي، اولس باید په یاد ولري چې زموږ هیواد دکفارو لخوا اشغال شوی دی او په وړاندې یې جهاد فرض عین دی، ترڅو چې کفري لښکرې زموږ له هیواده نه وي وتلې، جهاد ته به ادامه ورکوو او دغه الهي فریضه به په پوره اخلاص او متانت سره سرته رسوو.

# د آزادۍ په معنا آزاد خلک پوهېږي

## افغانانو ته د امریکا د مبارکۍ پیغام !!!

لیک : توریالی "همت"




ګرانو هیوادوالو د تیری آزادۍ او خپلواکی په رڼا کې د افغانستان روان اشغال باید د پای ټکی وموومی. دا یو لار لری او هغه د بهرنیو اشغالګرو او یرغلګرو په خلاف وسله وال جهاد ته ادامه ورکول دی. تر څو چې یو بهرنی هم زمونږ په ګران هیواد کی موجود وی، نو افغانستان ته آزاد او خپلواک هیواد ویل د عاقلانو کار نه دی آیا آزادی دیته وائي چې د هیواد ځمکه او فضا د بهرنیو په اختیار کی وي او د هیواد په ګوټ ګوټ په هر کور او هر دفتر کې د بهرنیانو واک او قومنده چلیږي. پخوا یو انګریز او بیا یو شوروی افغانستان اشغال کړی وؤ او اوس له ۴۸ څخه زیاتو متجاوزو هیوادو افغانستان اشغال کړی دی نو پخوانی ته اشغال ویل او دیته اشغال نه ویل به د کوم سالم عقل خاوند ومنی. اوس چې په ارګ کې د انګریزانو غلامان کومه آزادی نمانځی او د دغه جشن مصارف همدغه اشغالګر امریکایان او انګریزان، فرانسویان او نور تیری کوونکی هیوادونه ورکوی نو آیا آزادی دیته وایي چې اشغالګر د آزادی د ورځی د نمانځنی مصارف ورکړی او د هغوی د الوتکو او ټانکونو په واسطه واک ته ورسیږي، دا خو هسې په آزادی او خپلواکی پوری خندا او ملنډې وهل دی.

ګرانو هیوادوالو د آزادی په ورځ په هرات کې وحشي صلیبي اشغالګرو امریکایانو دوه کوچنی معصوم ماشومان په ډیری بې دردی سره په شهادت ورسول همدا شان امریکایان او نور اشغالګر هره ورځ بیګناه افغانان وژنی او څوک ورڅخه د پوښتنی حق هم نه لري. اصلا : – د هرات پیښه کې امریکا افغانانو ته یو پیغام ورکول غوښتل چې تاسو کومه آزادی جشن نیسۍ آیا د آزاد هیواد اتباعو ته به څوک په خیرنو او کړو سترګو کتلی شي که افغانستان آزاد وای نو بیا ولی چا امریکایان را ونه نیول دا خو لا څه چې غلامانو وربادی تندی قدری هم تریو نه کړ او آن د هرات په پېښه یې امریکا یانو ته ګیله قدری هم ونکړه او په پوره بې شرمی ئې تش په نامه د آزادی ورځ ونمانځله. آزادی نمانځل د هغه چا حق دی چې نن د اشغالګرو خلاف جنګیږی او اشغال په خلاف او د حقیقی آزادی په هیله په تودو سنګرونو کې پراته دی. هغه



ځوک چې د اشغالګرو په خدمت کې دي په هیوادي کې د هغوی بقا غواړي. له افغانستان څخه د اشغالګرو په تیښته خفه کیږي هغوی په کومو سترګو آزادي نمانځي او ۲۸ د اسد جشن نیسي، که د ملی اردو عسکرو کې غیرت وای نو د رسم ګذشت په ورځ به یې د قرغې د ستر غازي او شهید رفیع الله په شان د خپل ټوپک شپیلۍ د اشغالګرو ننداړچیانو او د هغوی د غلامانو په طرف راتاو کړی وای او د هغوی سینې به یې غلبیل غلبیل کړی وای د رسم ګذشت په وخت د جناب کرزي هغه عکس چې په مطبوعاتو کې خپور شو د آزادۍ ښه تمثیل کوی چې ټیټ سر پکی ولاړ ویو شاعر څه ښه ویلي قدر زر زرګر شناسد قدر ګوهر، ګوهری د آزادۍ په معنی آزاد خلک پوهیږي د غلامانو د آزادۍ نمانځني سره څه کار دی. په ارګ کې د انګریزانو څخه زمونږ د نیکونو د آزادۍ اخستلو ورځ نمانځل د خجالت او شرم خبره ده پداسي حال کې چې په زرګونو اشغالګرو فوځیانو افغانستان اشغال کړی دی په زرګونو افغانان یې په بګرام، قندهار او ګوتنانامو کې بندیان کړی په سلګونو زره ولسي وګړی یې شهیدان کړی هره ورځ د اشغالګرو له فجایعو څخه خبریږو چې قلم یې په لیکلو او ژبه یې په ویلو شرمیږی آیا د هغه چا لپاره د آزادۍ ورځ نمانځنه د شرم خبره نه ده چې خپل ځان او خپل کور په خارجیانو ساتی. آزادي نمانځل هغه چا سره ښائي چې اشغالګر ځواکونه ئې تیښتې ته اړ کړی دي. نه د هغه چا سره چې د افغانستان د اشغال لپاره یې بهرنیانو او اشغالګرو سره معامله کړی او کوي یې. یو شاعر وایې چې:

آزادي که خیراتی وی، یا د چا مهربانې وي افتخار به پرې ونه کا چې غیرت یې افغاني وي

افغان یو غیرتی قوم دی لکه څنګه یې چې نیکونو او پلرونو اشغالګر ځغلولی او له ګران هیواد څخه یې شړلی دي او هیواد کې آزاد کړی دی دوی هم غواړی چې موجود اشغالګر له افغانستان څخه د انګریزانو او شوریانو په شان د جهاد په ذریعه وځغلوی او ګران هیواد تری آزاد کړی نو کله چې بهرنی اشغالګر له افغانستان څخه وتښتیدل او هیواد تری آزاد شو او د کوم مقصد لپاره چې آزادیږی هغه تر لاسه شي نو بیا به آزادي لمانځل یو په سله خوند وکړی. د آزادۍ مقصد د صحیح اسلامی او شرعی نظام نافذول دی. د غلامانو له خوا د آزادۍ ورځې جشن نیول د شرم خبره ده او د مجاهدینو لپاره ستر ویاړ دی. روسان او انګریزان هغو غازي افغانانو ځغلولی د چا لمسیان او ځامن چې نن د قهریدلو زمریانو په شان په غرونو او رغونو کې د بهرنیانو ښکار پس ګرځی که واقعی مجاهد ته وویل شي، چې د اشرف غنی او عبدالله په ځای تا د افغانستان جمهور رئیس جوړوو. خو پدې شرط چې یو دلګۍ وسله وال امریکایان به په افغانستان کې پاتې وی. نو هغه مجاهد به ورته ووایي چې که یو بهرنۍ عسکر هم په افغانستان کې پاتې وي. زه به خپل وسله وال جهاد ته دوام ورکوم. او یا به ورته ووایي چې د دې بدل کې یو دلګۍ وسله وال مجاهدین به امریکا ته ولیږو په کومو شرائطو چې ستاسو عسکر دلته پاتې کیږی په هغو شرائطو به وسله وال مجاهدین هم هلته امریکا کې پاتې وی، لکه سفارتونه چې یو بل ملک کې یو بل سره متقابل برخورد کوی. له دې پرته واقعی مجاهد ریاست جمهوری د ځان لپاره غلامی او شرم خبره ګڼي واقعي مجاهد د ذلت له سل کاله ژوند څخه یوه لحظه د عزت ژوند او د عزت مرګ غوره او بهتر ګڼي د واقعي مجاهد دا شعار وی چې "یا د عزت ژوند او یا د عزت مرګ" واقعی مجاهد له دې پرته په بل څه نه قانع کیږي.

ګرانو هیواد والو! په نړیواله کچه داسي کوشش روان دی، چې واقعي آزادۍ په سمبولیکه آزادي بدله کړی لکه په ارګ کې د تیری ورځی جشن لکه څنګه چې ۴۸ اشغالګرو هیوادو افغانستان اشغال کړی او په ارګ کی د هغوی په

مصارفو د آزادی جشنونه کوی دا داسي مثال لری لکه د یو چا پلار چي غله له کوره ځغلولي وي، څه وخت وروسته د هغه غلوځامن بیا په هغه کور حمله وکړي او بیا دویم ځل کور ونیسي او د کور خاوند چیغې وهی او افتخار کوی چي زما پلار له خپله کوره د دغو غلو پلرونه شړلي او ځغلولي دي. نو دغه موجود غله او نور کلیوال به وایي" چي په خپله میړه نه یې په دنیا کې نو به فخر په بابا کوی تر کومه" نو بیا به دغه غله ورته وایي که ته تکړه یې او د خپل پلار ځوی یې نو مونږ وځغلوه. ستا سرنوښت زمونږ په لاس کې دی ته اوس زمونږ اختیار کې یې د خپل پلار پشان غیرتي شه نو بیا به دی د پلار د آزادی افتخار په ځای وی او تاسره به یې بیا نمانځل خوند وکړي اوس خو درته د آزادې نمانځل د شرم خبره ده.

یوه ملګري خوب لیدلی وه، چې جنت ته تللی وی ګوری چې په جنت کې غازیان افغانان او په جهنم کې انګریزان وی د افغانانو او انګریزانو مناظره وی د افغانانو مشری وزیر اکبر خان کوی او انګریزانو مشری مکناټن کوی. مکناټن وزیر اکبر خان ته وایي چې افغانستان کې څه حال دی ستا واک چلیږی او که زما واک؟ وزیر اکبرخان ورته وایې هغه ورځ در یاده کړه چې ماته دغی کندی ته را ولیږلی او زما ملګرو په میوند کې ستا شل زره عسکر چې اوس تاسره جهنم کې دې در ولیږل، او زما نورو ملګرو په لغمان کې و ریښمین تنګی کې ستا یوولس زره نور عسکر دغی کندی ته درولیږل، چې اوس تاسي پکې یاست او زما ملګرو ستا د لښکر د ښځو داسي خیال وساته لکه د خپلو خویندو میندو او لوڼو خیال چې ساتي ډاکټر بریډن سره یې ټول انګریزانی ښځي په عزت سره ستاسي واک لاندي سیمي ته ولیږل.

مکناټن بیا وزیر اکبرخان ته وویل چې زما لمسیان خو بیا هلمند "میوند" وریښمن تنګي" کابل او نور افغانتسان ته راغلل آن تردې چې زما د ملک شهزاده هري خو ځلي هلمند او میوند ته درغلی او د خپلو نیکونو لار یې تعقیب کړه ستا بچیان خو اوس زما د بچیانو باډي ګارډان دی، د دې ځواب راکړه: وزیر اکبرخان ورته وایې چې زما اصیل بچیان اوس هم ستا په بچیانو داسي کانې او داسي حملې کوی لکه ما او زما ملګرو چې په تاسي کولی ما ستا په وسله ستا کېرۍ ستا په مرکز بالاحصار کې وشیندله او زما اصیل بچې رفیع الله ستاسي د جنرال کېرۍ ستاسي مرکز قرغه کې وشیندله دا چې ځیني افغانان ستا د بچیانو غلامی کوي دا د هغو افغانانو بچیان دی کوم چې ستاسي غلامي یې هغه وخت کوله اصیل او مسلمان افغان به کله هم ستاسي غلامی ونکړي اې مکناټن ځان له بچیانو دی پوښتنه وکړه چې زما د اصیلو بچیانو د مرګونو فدایې حملو له ویري پمپرونه نه استعمالولی او هر وخت د خپل د مرګ انتظار نه باسی کوم بچیان چې ستاسي افغانستان کې وخت تیر کړی رښتیا وایه چې بیا له رواني ناروغیو نه کړیږي که نه؟ او خپل ځانونه وژني خو بیا افغانستان ته را تللو څخه ډډه کوی او آن چې زما د بچیانو له ویری په لندن کې خودکشي نه کوی؟ مکناټن وزیر اکبر خان ته وویل چې جناب ستا بچیان خو به له عمری خلافت څخه په کم څه نه راضي کیدل اوس ولې دوی د ابو جهل په نظام راضي شول؟ وزیر اکبر خان وویل زما اصیل بچیان اوس هم د عمری خلافت د راوستو لپاره قرباني ورکوی خو ځینو افغان نما بچیانو د عمرې خلافت د رامنځته کولو په لاره کې ستاسو په مرسته او لاسوهنه خنډونه را منځته کړل خو لري نه ده چې دا خنډونه لري شي او دا کار الله تعالی ته څه سخت او ګران نه دی. والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

# حقوق بشر در دستان امریکا

افغان ت-ل

حقوق بشر، آزادی، عدالت و دموکراسی، شعار ها و اصطلاحات زیبایی هستند که از دیرباز مورد توجه قرارگرفته اند. قدرت های بزرگ برای توجیه خواسته های سیاسی خویش از آن بسیار بهره جسته اند. این بهره وری به همین رویه هم اکنون نیز دوام دارد. آمریکا هم اینک سردمدار این رویه به حساب می آید. آمریکا سراسر دنیای بشر را با بیرق دفاع از حقوق بشر در نوردیده است. با این رویکرد، آمریکا هرساله وضعیت حقوق بشر را در سطح جهان مورد بررسی قرار می دهد و فهرست بلندی از ناقضین حقوق بشر را منتشر می کند.

حال سوال اساسی اینست که جایگاه خود آمریکا در حمایت از حقوق و آزادی های اساسی بشری در کجای این معادله قرار دارد؟ آیا آمریکا خود قلبا به این واژه احترام می گذارد؟ برنامه هایش در راستای حفظ، تأمین و گسترش حقوق بشر است یا در جهت مخالف حرکت می کند؟ آیا حقوق بشر برای آمریکا یک رسالت انسانی است یا از این کلمات بعنوان یک حربه برای سرکوب مخالفان و دست یابی به اهداف خاص، استفاده می کند؟

بررسی تاریخچه سیاست های ایالات متحده آمریکا و جهان این تلقی را نشان میدهد که آمریکا خود یکی از ناقضان حقوق بشر درسطح جهان و منطقه است. آمریکا اساسا هیچگونه اعتقادی به این اصل انسانی ندارد، بلکه صرفا از آن برای رسیدن به خواسته های پلید خود استفاده می کند.

باالاخص درفلسطین، بشر به صورت آشکارا شکارگلوله های دیکتاتوران می شوند. از کشته ها پشته می سازند، آمریکا نه تنها با این بشر نگون بخت هم صدا نمی شود، که صدای شان را خاموش می سازد. آمریکا نه تنها این فجایع انسانی را محکوم نمی کند که از دیکتاتور ها حمایت می کند، تجهیزات و ابزارهای سرکوب مردم را در اختیار قدرت حاکمه قرار میدهد تا صدای مردم را خفه کنند.

کارنامه ! سیزده ساله آمریکا در افغانستان این ادعا را ثابت می کند. آمریکا به عنوان دفاع از حقوق بشر زمینه ورود خود به افغانستان را فراهم کرد و این کشور را به اشغال خود درآورد

. مردم بازیافتند که این دستان همان دستانی اند که حقوق مردم را خود سلب کرده اند. ولی تأسف این جاست که این دستان هر روز از آستین دیگر می برآیند و رنگ دیگر می گیرند. وعده ها همچنان باقیست و نقض ها هم چنان دوامدار.

اما حقیقت خود به شهامت شهادت می دهند که آمریکا در افغانستان به دنبال حقوق خویش می گردند نه حقوق مردم. سوال این جاست که حقوق آمریکا در افغانستان چه می کنند؟ مگر این مملکت و این مردم کی حقوق آمریکا را ازایشان گرفته اند که آنان به دنبال حقوق از دست رفته اش در این دیار هجوم آورده اند؟

ارمغان حضور نیروهای آمریکایی در افغانستان و عراق چیزی جز ویرانی و کشتار مردم نبوده است. بازداشت و شکنجه افراد غیر نظامی، آزار و اذیت مردم توسط سربازان ناتو، بمب باران مناطق مسکونی و تجاوز به کودکان، کارویژه های مهمی هستند که در کارنامه آمریکا در افغانستان به ثبت رسیده اند. البته عوارض سلامتی ناشی از تشعشعات رادیواکتیو در تسلیحات شیمیایی آمریکا و بیماری های ناشی از سلاح های میکروبی اش از

جمله آیتم های است که در آینده در این کارنامه گنجانیده خواهد شد. چه آنکه اینک از دید، دیدبانان حقوق بشر پنهان مانده است. بدین جهت که آمریکا در پشت شعارهای حقوق بشری اش پنهان شده است تا چهره اصلی اش برای مردم پنهان بماند و ماهیت واقعی اش آشکار نشود.

آمریکا با همین چهره و با همین شعارهای زیبای حقوق بشری می خواهد عرض زمین و طول زمان را بپیماید و به منافع خود در سطح جهان و منطقه برسد. بدین رهیافت، سکوت آمریکا را در قضیه فلسطین می توان تفسیر کرد. چه آنکه نقض حقوق بشر در این کشورها مساوی است با بقای حقوق آمریکا. حضور و استیلای آمریکا در این سرزمین خود از بزرگترین نقض حقوق بشر در دنیای امروزی است. نقض حقوق بشر از عوارض حضور آمریکا در این مرز و بوم است. از این رو این مردم هنگامی حقوق خویش را باز خواهند گرفت که دست آمریکا را از این ملک کوتاه کنند.

آزادی، حقوق بشر، دموکراسی، و دیگر مفاهیم مدرن امروزی از جمله ابزارهای عقلانی و فریبنده ای است که آمریکا و همپیمانان غربی اش، آن را در کشور های مختلف دنبال می کنند. این مفاهیم ابزارهای دلنوازی هستند که زندگی بشری به آن دلپذیر می شود. بدین رهیافت ملت هایی که سالها رنج و مشکلات را تحمل کرده اند به شدت خواهان و بدنبال همین اصول هستند. چه آنکه این اصول زمینه ی یک زندگی آرام و به دور از تنش را برای مردم نوید می دهد. و اینک این مردم، وقتی که گمشده ی خود را در پناه مفاهیمی چون حقوق بشر، دموکراسی، برابری و مانند آن می یابند بی درنگ به سوی آن هجوم می آورند، غافل ازآنکه اینها جز شعاری، بیش نیست. چه آنکه آمریکا و کشورهای غربی در پشت این شعار ها، اهداف و منافع خاص خود را دنبال می کنند و اساسا خود، هیچ گونه اعتقادی به این مفاهیم ندارند. در حقیقت طرز برخورد آمریکا و متحدین اش با مفاهیم حقوق بشر یک شیوه فریبنده و ریا کارانه است. چه آنکه خودشان نخستین پایمال کنندگان این مفاهیم هستند. ( افغان ـ ت ل )

# په دنده کې د بريا لپاره لس کلياني

په ژوند او ورځنيو چارو کې بريا خورا ارزښتمن توکی دی. هر سړی په خپل کار کې د بريا په لټه کې وي او خوښوي چې د يوه اغيزناك شخص په تو ګه په خپلو ملګرو او همکارانو ګران وي. خو په کاري ژوند کې بريا ته رسيدل يو ستونزمن کار دی.

همدې ارمان ته د رسيدو په موخه، لس وراندیزونه کښل شوي دي.

١ -ځان وپيژنه.

هغه وخت انسان کولای شي خپل ځان ښه درك کړي چې خپل د پياوړتيا او کمزورتيا ټکي وپيژني، کله مو چې دغه ټکي کشف کړل، بيا نو د پياوړو ځانګړتياوو د لا قوت دکمزوريو د له منځه وړلو لپاره هڅه وکړي. د ورځنيو ستونزو سره د مخ کيدو له لارې، کولای شو په ښه توګه چې خپل ځان وپيژنو، دا کار هغه وخت شونی دی چې نور د دغه ستونزو په رامنځ ته کولو کې تورن نکړو بلکه هڅه وکړو چې خپل هغه کړه وړه پيدا کړو چې د دغې ستونزې د رامنځ ته کيدو لامل شوی دی. د ښې پيژندنې لپاره اړينه ده چې خپل وپيژنو تر څه خپل ځان له وس نه پورته په زحمت نکړو، او هغه موخې وټاکو چې زمونږ رسيدل ورته شوني وي.

٢ -د فکر کولو سره ځان عادت کړه.

فکر کول د انسان لپاره د ژوند په مختلفو حالاتو کې يوه ښه وسله ده. منظم فکر کول د زياتو کتابونو د مطالعې او د معلوماتو له لرلو نه ګټور دی، ځکه منظم فکر انسان ته د ستونزو او خنډونو منځ ته راتګ په ګوته کوي، او د هغوی د لرې کولو لپاره مناسبې لارې چارې پيداکوي.

٣ -په چارو کې نيك شګوم نيسه.

د پرمختګ، او د ستړيا د لرې کولو لپاره خوشحالي او هيله د انسان معشوقه ده. هر څوك چې غواړي پخپل کار کې بريالي و اوسي، نو بايد خپل کار په خوشحالی او د ښو پايلو د لاس ته راوړلو په هيله پيل کړو. انسان هغه وخت بريالی کيږي چې خپل ژوند ته خوش باوره و او سيjob-works.

# امریکا له خپلو لاسپوڅو سره څه کوي؟

حامد نوري

په داسې حال کې چې په ظاهره له افغانستان نه د امریکايي ځواکونو د وتلو خبرې کیږي، خو په حقیقت کې هغوی د خپل پوځي حضور ډول بدلوي، په افغانستان کې یو شمېر هغه کسان چې له امریکا سره یې د افغانانو په وژلو، نیولو، بندي کولو، زخمي کولو او نورو کارونو کې مرسته کړې اندېښمن دي چې له دوی سره به څه کیږي. ایا دوی به افغانانو او مخالفینو ته پرېښودل کیږي چې د خپل غچ او غوسې په اور کې یې وسوځوي او که به امریکا ورته ویزې ورکوي او له ځان سره به یې امریکا ته وړي؟ په دې ورځو کې په کابل کې د غربي هېوادونو د سفارتونو په دروازو کې د دغه ډول کسان بیروبار دی. دوی له امریکا او

نورو اړوندو هېوادونو غواړي چې له وتلو وروسته یې یوازې پرې نږدي او له ځان سره یې بوځي. په همدې تړاو د امریکا متحده ایالاتو د بهرنیو چارو وزیر پر خپل حکومت ږغ کړی دی چې له واشنګټن سره همکارو افغانانو ته دې ځانګړې ویزې ورکړي. جان کېري د خپل هیواد له کانګرس څخه غوښتني دي چې سږکال په دوبي کیې دې هغه قانون تصویب کړي چې له مخې یې له واشنګټن سره همکارو افغانانو ته د ځانګړو ویزو ورکولو تعداد ډیریږي. کیري د پنجشنبې په ورځ له «لاس انجلس ټایمز» ورځپاڼې سره په مرکه کې ویلي دي: ((خبره د امریکا متحده ایالاتو د ګټو نه ده. او نه هم افغانانو ته د ډالۍ ورکولو. بلکې دغه اقدامات د دې له پاره دي چې د هغو کسانو له پاره چې خپل ژوند یې له امریکایانو سره اوږه پر اوږه کارکولو سره په خطر کې اچولی و، پر خپلو ژمنو باندې وفا وکړو.)) ددغه پروګرام له مخې، د بېلګې په توګه په افغانستان کې د امریکا سفارت کارکوونکو ته چې ژوند یې له ګواښ سره مخامخ کیږي، ویزې ورکول کیږي، له ۲۰۰۹ کال راهیسې پیل شوی دی. په نږدې وختونو کې د دغو ویزو د ورکولو وخت ختمیږي. د روان مالي کال تر پایه پورې چې د سپتمبر میاشتې پر ۳۰ نېټې پای ته رسیږي، په پلان کې ده چې یوازې ۳۰۰۰ دغه شان ویزې ورکړل شي.

امریکايي ځواکونه چې کله له یوې سیمې وځي، نو له خپلو سیمه ییزو متحدینو سره څه کوي؟ په دې تړاو د امریکا چلند له دې سره تړلی چې له وتلو وروسته یې په هغه سیمه کې پلان څه دی. که امریکا غواړي چې په هغه سیمه کې چې دوی ترې وځي، له دې وروسته هم خپل نفوذ او لاسپوڅي ولري، نو له خپلو پخوانیو همکارانو، جاسوسانو او لاسپوڅو سره داسې چلند کوي چې نور کسان هم له دوی سره دغه ډول همکاریو ته زړه ښه کړي. خو که امریکا هغه سیمه یو مخ پرېږدي، نو بیا له خپلو مزدورانو، لاسپوڅو او جاسوسانو سره ناوړه چلند کوي، هغوی پرېږدي چې د مخالفینو د غچ اور یې وسوځوي. موږ د همدغه ډول کړنو ګڼې بېلګې لرو.

کله چې امریکا په ویتنام کې شرموونکې ماتې وخوړله او بیا یې نه غوښتل چې هلته خپل حضور ولري، نو خپل متحدین یې د مخالفینو غوسې ته یوازې پرېښودل. ان هغه کسان چې له دوی سره یې مرسته کړې وه، د دوی د وتلو پر وخت یې په امریکايي ټانګونو، موټرو، بېړیو او نورو لېږدونکو وسایلو پسې منډې وهلې او ځانونه یې پسې بندول، خو امریکايي ځواکونو به دوی په لتو وهل او غورځول به یې، چې وروسته بیا د مخالفینو منګلو ته ورسېدل. خو په ځینو سیمو کې لکه په عراق کې یې بیا خپل متحدین او جاسوسان مخالفینو ته پرې نښودل. د دوی یوه برخه یې له ځان سره یووړل او یوه برخه یې همله په عراق کې وساتل تر څو له دوی سره مزدورۍ ته همداسې دوام ورکړي.

اوس په افغانستان کې هم امریکا له خپلو مزدورانو سره د امریکايي ګټو سره سم چلند کوي. د امریکا د بهرنیو چارو د وزیر دا خبره چې موږ ګواکې د امریکا د ګټو لپاره نه، بلکې پر خپلو ژمنو د وفادارۍ په موخه دوی ته ویزې ورکوو، د خندا وړ ده. امریکا یوازې د خپلو ګټو لپاره له بل چا سره مرسته کوي.

له امریکايي ګټو پرته بل داسې هېڅ ارزښت نشته چې امریکا دې یې له مخې له نورو سره مرسته وکړي. له دې امله چې امریکا په افغانستان کې پاتې کېږي او یوازې د خپل حضور ډول بدلوي، نو له شک پرته چې خپل لاسپوڅي به تر ډېره خوندي کړي. دوی دا کار ددې لپاره کوي، تر څو نور خلک هم له دوی سره مرستې او جاسوسۍ ته زړه ښه کړي. خو هغوی چې له امریکا سره یې همکارۍ ته زړه ښه کړی باید پوه شي چې امریکا یوازې تر هغه وخته په خپله ژمنه وفا کوي چې امریکايي ګټې په کې نغښتې وي او کله چې خبره د امریکايي ګټو نه وي، نو بیا به یې د ویتنام په شان مخالفینو ته پرېږدي او د هغوی د غوسې او غچ د اور په لمبو به کې په وسوځي.

# د تسبیح لمونځ (صلات التسبیح)

ګرانو ورونو، ددې معلوماتو په ویلو سره خو موشروع په وکړه نو لطفا دغه نوټ تر پایه پورې وواياست انشاالله خدای پاک به یې حتما اجر درکړي.

یو ورځ رسول اکرم (ص) وخپل اکا عباس ته وویل غواړې چې یوه تحفه درکړم هغه وویل ولې نه رسول اکرم (ص) ورته وویل چې د تسبیح لمونځ هره ورځ کوه که یې هره ورځ نسي کولای نو په هفته کې یې یوار کوه که یې په هفته کې هم نسي کولای نو په میاشت کې یې یوځل ادا ... کوه که یې په میاشت کې هم نسي کولای نو په کال کې یوځل اداکوه او که یې په کال کې هم نسي کولای نو په ټوله ژوند کې یې باید یوځل ادا کړي ترڅو په اخرت کې سوکاله ژوند ولري.

د تسبیح لمانځه نیت: نیت مې کړی د لمانځه چې ادا کړم څلور رکعته لمونځ، خاص د خدای تعالی لپاره...

د لمانځه ترتیب:

له نیت وروسته د نورو لمنځونو په څیر لاسونه تړل کېږي، له سبحانک اللهم او اعوذ باالله او بسم الله ویلو وروسته ۱۵ ځله د تمجید کلمه ویل کېږي. له هغه وروسته الحمد الله شریف او له هغه وروسته یو ځل بیا ۱۰ واري د تمجید کلمه ویل کېږي.

وروسته رکوع ته ځو او د رکوع له تسبیحاتو (سبحان ربي العظیم) وروسته د رکوع په حالت کې ۱۰ ځله د تمجید کلمه ویل کېږي. کله چې مو سمع الله لمن حمده وویل او راپورته شوئ بیا ۱۰ ځله په ولاړو د تمجید کلمه ویل کېږي. وروسته سجدې ته ځو، د سجدې له تسبیحاتو (سبحان ربي الاعلی) وروسته ۱۰ پلا همدا کلمه ویل کېږي. د دواړو سجدو په منځ (جلسه) کې هم ۱۰ واري د تمجید کلمه ویل کېږي، په دوهمه سجده کې هم ۱۰ ځله ویل کېږي. له راپورته کېدو وروسته دوهم، دریم او څلورم رکعت د لومړي رکعت په ډول ترسره کېږي. چې په هر رکعت کې ۷۵ ځله د تمجید کلمه ویل کېږي او په څلورو رکعتونو کې ۳۰۰ ځله دغه کلمه ویل کېږي.

د تمجید کلمه: سبحان الله والحمد لله ولآ اله الا الله والله اکبر ولا حول ولا قوة الا بالله العلی العظیم. (د تسبیح په لمانځه کې که «ولا حول ولا قوة الا بالله العلی العظیم» وویل شي ښه ده، خو که ونه ویل شي هم باک نه لري) یعنی که د تمجید کلمه سبحان الله والحمد لله ولآ اله الا الله والله اکبر وویل شی هم صحت لری

# د اسلامي نړۍ نوموتی قاري

# عبدالباسط څوک و؟

خبیر احمد

عبدالباسط ، د اسلامي امت او مسلماني نړۍ په سطحه هغه نوم او شخصیت دی ، چې کله یې نوم یادشي ، ورسره غبرګ د هغه خوږ الحانه حنجره او ملکوتي قراني ترنم په ذهن کې انګازې جوړې کړي او سړی د معنویت دنیا ته والوزوي .

چاچې ویلي ، د قاري عبدالباسط غږ او حنجره د قرانکریم زینت دی ، مبالغه یې نده کړې ،ځکه حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په یوه مبارک حدیث کې فرمایلي :

وعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " : لِكُلِّ شَيْءٍ حِلْيَةٌ ، وَحِلْيَةُ الْقُرْآنِ الصَّوْتُ الْحَسَنُ ، یعني د هر شي لپاره ګاڼه او زینت وي ، د قران کریم ګاڼه او زینت ښکلی غږ او اواز دی . (مصنف عبد الرزاق ودارمی )

د عبدالباسط غږ یو الهي لورینه او انعام دي چې الله تعالی په خپل د غه صالح بنده باندې پیرزو کړې او د اسلامي امت د ممتازو قاریانو او حفاظو په ردیف کې لوی مقام او ځانګړتیا ورښلې . د هغه په تلاوت او غږ کې طراوت ، ښکلا ، تاثیر او معنوي حسن د و مره څرګند او منلی و و چې د قرانکریم د مبارکو ایاتو نو او سورتونو په لوستلو به یې په سترو نړیوالو محافلو کې د مسلمانانو جذبې او دیني انګازې نه داچې راوپارولې ، بلکې په کراتو داسې پیښه شوې چې د عبدالباسط په تلاوت په لسهاوو تنه ناست کفار د قرانکریم اعجاز ته سلامي شوي او ځای پرځای د اسلام په مقدس دین مشرف شوي .

**استاد عبدالباسط څوک و :**

عبدالباسط ، د عبدالصمد ځوی په کال ۱۹۲۷ کې د مصر هیواد په یوې لیرې پرتې سیمې «المزاعزه» کې دنیا ته سترګې رڼې کړې ،ویل کیږي چې کله صلاح الدین ایوبی ، له ترکیې څخه مصر ته لښکري لیږلي ، نو د عبدالباسط کورنی هم له ترکیې څخه مصر ته هجرت وکړ، یعني هغه د نسب په لحاظ د ترکیې کردی دی .

عبدالباسط په خپله یوې مرکې کې چې ځنګه یې د قرانکریم له حفظ سره مینه پیداشوه داسې توضیحات ورکړي .

په لس کلنی کې مې قرانکریم یاد کړ، تل به مې داارزو لرله چې الله تعالی ترینه مشهور قاري جوړ کړي ، ما به د قرانکریم د تلاوت داوریدلو لپاره چې خواږه تلاوتونه واورم هر وخت تلوسه درلوده ، تردې چې زمونږ په کلي کې یو سماوت

یاچای خونه وه چې راډیویې درلوده ، بل چازمونږ په سیمه کې راډیونلرله ،نوله خپل کلي څخه به مې درې کلومتره مزل کاوه اونوموړي سماوات ته به مې ځان وررساوه

له راډیو څخه به دمصر دحکومت له لوري دوخت دمشهورو قاریانو ( شیخ رفعت اوشیخ شعشاعی تلاوتونه خپریدل ، نوزه به دهغودا وریدلو لپاره ورتلم .

شیخ رفعت به په اونی کې دوه ځله (ددوشنبی اوجمعي) په ورځو کې تلاوت کاوه ، ماته به دهغه تلاوت زیات خوند راکاوه.

ماقرانکریم په لس کلنی کې یاد کړ، اوه ګوني (قرائات سبعه) مې په ۱۲ کلني زده کړل ، اولس قرائتونه مې په ۱۴ کلنی کې زد کړل .

دقرانکریم په حفظ اود ټولو قرائتونو په زد کړې سربیره مې دمعاني وو کتابونه هم وویل ، ځکه چې علم معاني ، دقرانکریم ،دتلاوت ، فهم اونورو لازمي قوایدو په رعایت کې مهم رول لري .

په ۱۹ کلنی کې په ۱۹۵۱ کال ، دړومبي ځل لپاره ، دمصر پلازمیني قاهرې ته ولاړم ، یوه ورځ هلته دنبوي میلاد په مناسب لوی محفل جوړشوی و، دمصر دمشهور قاریانو له لوري تلاوتونه ویل کیدل ، داچې زه بې واسطي اوغریب کس وم په هیڅ ډول ممکنه نه وه چې ماته دې دتلاوت کولو موقع راکړل شي ، خویوه قاري اواستادزه پیژندلم زما تلاوت یې اوریدلی وو، هغه راته دلسو دقیقو لپاره دتلاوت کولو وخت واخیست اوراته ویل چې ګوره لوی چارواکي اومشهور قاریان ناست دي چې کم مورانه ولی ، زه هم زړه اونازړه وم چې تاثیر راباندي ونه غورځیږي اوداستهزاوړونه ګرزم .

دالله تعالی فضل اواحسان وو ، یونیم سات مې تلاوت وکړ، کله به چې ما ځان دتلاوت بسوالی ته جوړاوه دزرګونو برخوالواوحتی مشهورو قاریانو له لوري به راباندي ددوام غږونه کیدل اوتشویقولم به یې . .

هماغه وو چې دمسؤلینو له لوري وهڅول شوم چې په قاهره کې پاتې شم اوپه راډیو کې تلاوتونه پیل کړم ، نوزما دشهرت ابتدا دمیلادله مبارک مجلس نه شروع شوه . .

استاد عبدالباسط دمرکي په اوږدو کې وایي : په ۵۲ کلنی کې دحج په سعادت مشرف شوم اوپه ړومبي ځل دسعودي دتلویزون اوراډیو کاروکونکو زما تلاوت ثبت کړ.

استاد وایي ،زه په دې عقیده یم چې هر کله قرانکریم له زړه څخه تلاوت کړل شي ، په زړه اثرغورځوي اوپه اوریدونکو هم اثراچوي ، زما دتلاوت انداز خاص دی ، یعني له چا څخه مې لهجې ندي نقل کړي ،په عین حال زما په لهجه اوسبک باندي اوس په ډیروهیوادونو کې ښاغلي حفاظ اوقاریان عبور کوي اوتقلیدیې کوي ، که څه هم په دې خوشالیږم چې څوک یې په تلاوت اوحنجره کې تقلیداوپیروي وکړي ، خو په هغه سربیره مې توصیی دادي چې ښاغلي حفاظ اوقاریان دي زیاروباسي ترڅو ځانته په خپله صنع وکړي اودخپلو حنجرو په انګازواوقوت دقرانکریم پاکوزمزموته نوی اهنګ اوترنم ورکړي .

عبدالباسط زیاتوي : دقرانکریم تلاوت چې دزړه له تله اواخلاص څخه وي ، په هغه مهال په قاري باندي داسې روحاني شیبې اومنور حالت راولي چې له شک پرته بایدالهي فیوضات اوپه هغه مجلس کې دپرښتونوراني حضوروبلل شي . مایوځل ماپه مسجدنبوي کې دالمزمل سورت تلاوت کاوه اوالمغرب دپاچا په ګډون ډیروچارواکوبرخه درلوده اوغوږیې نیولی وو، باوروکړي چې په ماباندي داسې یو کیف اوحالت راغی چې له دنیاسره مې رابطه بلکل قطعه اوماویل چې نورپه جنت کې ناست یم . استاد دخپلو توضیحاتو په لړکې وایی ، هغه ډیروهیوادونو ته سفرونه کړي اودقرانکریم دتلاوت په سترومجلسونو کې چې په زرهاوو خلکو په ګډون کړی وو برخه اخیستی .

دامریکا ۱۴ ایالتونو ته چې هلته زیات مسلمانان اوسي سفرونه کړي ، چې دالله تعالی دخاص فضل اوکرم له مخې چې هرځل به ماد قرانکریم تلاوت وکړ، په پای کې به په درځنو امریکایان اودنورو هیودونوا تباع راپورته شول، هیبت به

اخیستي وو او په اسلام باندي به مشرف کیدل ، چې زما د تخمین له مخې چې دتلاوتونو په مجلسونو کې زما په وړاندې مسلمانان شوي شمیر سلهاوتنو ته رسیږي (الحمدلله) چې دازما لپاره تل پاتې ویاړونه اودځان لپاره یې لوی الهي سعادت ګڼم.

اوزما تر ټولو ښکلی سفرچې هیڅکله مې نه هیریږي دمسجداقصی و، چې دفلسطین دمسلمانانو په دعوت تللی وم اوهلته لا په فلسطین باندي اسراییلي اشغال اویرغل خپل کرغیړن سیوری نه وغورځولی ، ما به هلته هره شپه داسرا سورت په ډیرخوندلوسته اوزرګونه مسلمانان به راته ناست وو ، همدارنګه به دفلسطین په راډیوسربیره په همدې حالت کې له ډیرونوروعربي اواسلامي هیوادونودراډیوګانوله څپوڅخه هم زما تلاوت مخامخ خپریده .

## دقاري عبدالباسط وفات:

استادعبدالباسط ،دیني دسرطان په ناروغی اخته شو، په کال ۱۹۸۸ کې دنومبرپه ۳۰ نیټه د۶۲ کلونوپه عمر وفات اودافاني دنیایې دابدي دیارپه نیت پریښوده ، داسلامي نړی ددغه ځلیدونکي نوراني ستوري په جنازه کې په داسې حال کې چې په زرهاوومسلمانانو برخه درلوده دټولو اسلامي هیوادونو سفیرانو دخپلو هیوادونو داستازو په ډول پکې برخه واخیسته اوپه قاهره کې خاوروته وسپارل شو. الله تعالی دې دهغه ټول قراني خدمتونه په خپل دربارکې قبول اودهغه دغږ اولحن انګازي او شغلي دې دمسلمانانو په زړونو اودماغونوکې تل ترتله اومعطري ولري . امین

### ایا په تیاره کې لوستل یا سکین ته کتل ستر ګو ته تاوان لري ؟

تاسو به شاید اوریدلی کله چې دخونې څراغ مړ وي الیکترونیکي الات کارول ستاسو ستر ګو ته زیان رسوي یا کله چې څراغ مړ وي تاسو په خپل بستر کښې وړوکي ګروپ لګوی ترڅو کتاب ولولي . کله چې تاسو داسې وطاق یا خونې ته داخل سې چې ړنا کمه وي لوموړی ستاسو ستر ګې پخپله ځان عیاروي پدې معنا ستر ګې کښې دراړ په نامه جوړښتونه دي داجوړښتونه یو ډول کیمیاوي مواد ترشح کوي دغه کیمیاوي مواد ړنا کشفوي او وروسته تر دې داړنا په بریښنایي سیګنالونو تبدیلوي او بیا هغه مر کزي عصبي سیستم ته یې لیږي تر څو داسیګنالونه وژباړل سي او تصمیم پرې ونیول سي.

دوهم دستر ګو دننه د iris په نامه عضلات وجود لري دغه عضلات په همدې مهال کښې استراحت حالت ته اوړي خو ستاسو دستر ګو حدقه لویږي ترڅو زیاته ړنا واخلي بلاخیره ستاسو دستر ګو عصبي رشتې دچاپیریال سره ځان عیاروي . کله چې تاسو لیکنه لولي یا سکین ګوری تاسو باید دهغه لیکنې پر کلیماتو باندي تمر کز او دیقت وکړي پدې وخت کښې ستاسو ستر ګو عضلات باید په مسلسل ډول متراکم سي تر څو دغه کلیمات ښه ولوستل سي.

دډیر وخت لپاره همداسې مطالعه کول ستاسو ستر ګې ستړي کوي ځکه ستر ګې پدې وخت کښې نه رپیږي یو مشکل چې لدې وجې راپیداکیږي هغه ته دستر ګو کشیش یا eye's strain ویل کیږي. دستر ګو کشیش لاندي نښناني لري -:

۱ -دستر ګو ستړي کیدل ۲ -دستر ګو درد ۳ -دستر ګو خارښت

۴-دسر درد ۵-دملا او مرۍ درد ۶-ګډوډه لیدنه

تر اوسه پوري داسې څیړنه نده سوې تر څو دستر ګو دایمي مشکل له دې وجې وښي خو دغه پور تنی نښې او نښانې موقتي دي دځه وخت وروسته بیر ته ستر ګې نورمال حالت ته راګرځي خودامعنانه لري چې تاسو باید هر کله همداسې وکړی ځکه ډیر زیات فشار او ستر ګې ستړي کول حتماً دایمي مشکل سره مخ کوي. لازمه داده چې دهرو ۱۰ او ۱۵ دقیقو کښې یوځل باید مخ له الیکترونیکي الې څخه واړوی مثلاً پکې ته کتل یا بل لوري ته او ستر ګې ورپوی. خو یاد ساتی کله چې ړنا کمه وي خپل دالیکترونیکي الاتو ړنا کمه کړی او یا دخپل وطاق څراغ ولګوی تر څو شاوخوا چاپیریال کښې ړنا خپره سي .

لطف الله خیرخوا

## ټاکنې او اصلح کاندید؟!

په توګه کارول کیږي، نو "صالح" کاندید به څه معنا لري؟

بلـه اساسي پوښـتنه داده، چې داخو قطعـا هغـه انتخابـات نـه دي، چې زموږ ځیني خلک ور ته د جواز دلایل لټوي، پـه دې معنـا چې پـه دې مکـانزم کې تشریعي سلطه او حاکمیت د ولس دی او دا دعقیدې د علماو له نظره کفر دی. همدا ډول ځان ته منصب غوښتل حرام دي، دوی یوازې دا نـه چې جمهوري ریاست غواړي، بلکې نوره طبلـه ماري هم کوي. دا پر تـه لـه هغـه چې دا انتخابـات د کفـر د سـلطې، د اسـتعمار د برلاسـیتوب، د اسـلامي خاوري د اشغال او د مسلمانانو د ذلت پر مهال کیږي.

د قرآن کریم حکم خو دا دی، چې ظالمانو ته میلان قدرې هم مـه کوئ، نو پـه ظلم کې ور شریکېدل بـه څـه حکم لـري؟ الله تعالی فرمایي : ((وَلَا تَرۡكَنُوٓاْ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ)) معنـا ظالمـانو تـه میلان قـدرې هم مه کوئ، چې اور به مو وسوزوي. ډېری مفسرینو له "ر کون" درې معنا ګانې مرادوي.

لومړی معنا محبت، دوهمـه مرسـته، درېیم لـه یو چـا غلي پـاتې کېدل. مفسرین معنا کوي : چې ظالم سره محبت مه کوئ، مرسته یې مـه کوئ، د چا په کفر او ظلم غلي مه پاتې کېږئ، چې الهي عذاب به مو ووهي.

سوال دلته دا پیدا کیږي، چې د اوسني دولت پـه کفر غلي پـاتې کېدل خو څه کوې، چې په کې شرېکېدل او د دې تمـه چې کوم اصلح کاندید بـه لري، د کوم ډول الهي عـذاب سبب شي؟ زه خو د زړه لـه تلـه او د مسلمانانو ورونو د خیر خـواهۍ پـه بنسـټ غږ کوم، چې پـام وکـړئ، مـازې سیاسـي مواقف د اسلام احکام نه شي بدلولی.

د پور تني ایت په تفسیر کې امام الوسي رحمه الله دوه واقعې ذکر کړې، په دې قضیه د سړي سر خلاصوي. وایي چې یو سړي سفیان ثوري رحمـه الله ته وویل چې زه ظالمانو ته خیاطي کوم، زما دا عمل خو بـه میلان نه وي؟ هغه ور ته وویـل، چې دا پـه خپلـه ظلم دی، میلان د هغـه چـا دی، چې پـه تـا ستنې خر څوي!

ورپسې لیکي چې امام زهري سلاطینو سره ناسته پاسته ډېره کړې وه، نو یو عالم ور ته لیک راواستاوه چې : تـه اوس داسې یو حالت کې یې چې ستا هر پېژندونکی باید در ته دعا وکړي، د الله جل جلاله نعمتونو دې کار ډېر دروند کړی. پر خپل کتاب یې پوه کړی یې، د خپـل نبي علیـه الصلاة والسلام د سنتو علم یې در کړی، در ته یې فرمایلي چې ((لَتُبَيِّنُنَّهُۥ لِلنَّاسِ وَلَا

مـا تـه خو ډېره هېښوونکې ده، چې څنګه، هم د یو نظام پر ضد جګړه کېدای شي او هم په کې ګډون؟ د یـو نظـام نـړول چې فرض وي او ناسته ترې د سـختې ګنـاه ارتکـاب وي، مقاطعـه ورسره فرض وي، پـه کې شـریکېدل بـه څـه حکـم لري؟

انتخابات د کفر تر سیوري لاندې کیږي، د صلیبي موخو د تر لاسه کولو لپاره د یوې لارې

تکتمُونَهُ)) دا کتاب به خلکو ته بیانوئ، پټوئ به یې نه، تا چې هغه تر ټولو کمزوری ار تکاب کړی دادی چې د ظالم خوا دې ډکه کړې، د ګمراهۍ لارې دې ور ته اسانې کړي. ستا په نږدېکت یې چا ته حق نه دی سپارلی، نه یې له ظلمه لاس اخیستی، ددوی باطل کارونه له تا چورلي، له تا یې د ګناهونو لور ته پُل جوړ کړی، همدا ډول تـه د دوی لپاره د ګناهونو لور تـه د ختلو زینه یې، ستا له امله په علماو شکونه پاروي، جاهلان دربانـدې ځانته راماتوي، پـه څومره لږ شـي قانع یې او څومره کار درنه اخلي؟!! ستا دین یې فاسد کړی، په څه مطمئن یې؟ د دې ایت لاندې نه راځې؟ ((فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا)) معنا لـه انبیاو او غوره خلکو وروسته داسې بد خلک راغلل چې لمونځونه یې ضایع کول او د شهوتونو پیروي یې کوله، دوی به د دزوخ ملاقات وکړي - ته جاهلانو او غافلانو سره تعامل نه کوې، دین ته دې مرض رسېدلی علاج یې وکړه، مرګ نږدې دی ځان تیار کړه، الله جل جلاله ته هر څه ښکاره دي. والسلام.

دلتـه دا خبـره ذهـن کې ساتل غـواړي، چـې دا خبـره د هغـو مسـلمانو سلاطینو په اړه ده، چې د کفر پر ضد یې دومره فتوحات کړي، چې اوس یو خیال دی، نه دغه سلاطین چې کفر دلته د اسلام پر خاوره مسلط کړل، د اسلام او مسلمانانو پر ضد جنګیږي او تر اوسه یې معنوي او مادي ملاتړ کوي.

یوه بله خبره هم یادول غواړي، چې مفسرین د ((الَّذِينَ ظَلَمُوا)) پـه اړه فرمایي، چې جمع یې ځکه ویلې چې بایـد دظلم لـه ټولي او ډلې اجتناب وشي. معنا دا چې شخص مهم نه دی، صالح دی که طالح، بلکې نظام مهم دی، چې ځان ترې وساتل شي!

پای ویلی شو، چې نظام فاسد وي، د یو شخص صلاح به څه معنا ونه لري. زموږ یو دوست داسې کار ته ډېر ښه مثال ور کوي، وایي لکه سړی چې په تیاتر کې د فلم لیدو پر مهال لمونځ کوي! دغه نظام چې لاهم مسلمانان وژني، دغه نظام چې مظلوم د څو پیسو بدل کې د ظالم پښو ته حلالوي، دغه نظام چې د الله جل جلاله د حاکمیت پر ضد د ولس حاکمیت پلی کوي او په همدې بهانه د څو شیطانانو مطالب خوندي کوي، دغه نظام چې د مسلمانانو خاوره صلیبي سرلښکر تـه ډالۍ وړاندې کوي، څنګه د دې جوګه کېدای شي چې په کې شریکېدل هوښیار تیا او عقل وګڼل شي؟ حتی پرېښوول یې رواشي؟

د ظالمانو د مخالطې پـه اړه خو نهې راغلې ((فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ)) او بیـا داسې مخالطـه چې د هغـوی پـه اصولو او مېتـود د هغوی حکومـت کې شـریک شـي، دا بـه کـوم سیاسـت او اسـلام وي؟ د دې ګډون ګټه به یوازې او یوازې کفر تـه وي، ځکه چې ډله یې غټه شوه، اواز یې غبر ګ شو، دا چې اسلام به حاکم شي، نو د هغې لار یوازې جهاد دی، دا ګډوله نظامونه نه اسلام غواړي نه یې نافذولی شي.

# ګلځونه

## شهیدې نازنین ته

(حافظ محمد قاسم زهیب )

صد آفرین دې په ایمان شه نازنینې خورې
زمورپتمنې غیرتمنې اوسنګینې خورې

تا د خپل رب په د ښمنانو ګوزارونه وکړل
په تازیږي پریښتې اوحورې سپینې خورې

موږله خپل دین وطن ناموس نه ډیرسرونه ځارکړل
شکردی تاسوهم ځان ځارکړوله دې مینې خورې

په دې نازک عمر،نازک لاس او محکم هوډ سره
ماغزه دې وشیندل د ستر دجال مومینې خورې

پاک شهادت دې مبارک شه د(زهیب)خورکۍ
تا کړې په وینودتاریخ پاڼې زرینې خورې

## د غاټولو خوځښت

اختر محمد بهار مستغفر

ترهغو به مو وي توره پسې لښته
آن چې وباسو ددې بې دینو خښته
دلته کاڼي بوټي هم پرې غزا کاندي
کوم د خدای دښمن چې راشي په دي دښته
په دې کور د نام وننګ کې د سپک نه دي
دا بد مخي، دا بې سپکه بې ارزښته
ډیرښه ، بیا اجل لمنه کړه پرې ډکه
ځمکه اور شوه پرې دغشو له اورښته
چې بد ګرځي بد به پرځي دا خو ځکه
ګلان نه دي وړي چا له اغزن کښته
بیا رادرومي مسافر بهار پر کلي
ښکلا اوري د غاټولو له خوځښته

(عرفان الله عرفاني)

څواقوال راته بیان کړه مدلل
ښه تفسیرې راته وکړه مفصل
عیب دي نه وي څوپوښتنې درنه کړمه
څوباریکې مسئلې کړه راته حل
دحدیثویو کتاب راته شروع کړه
دجهادباب راته اووایه اول
څه صرفي نحوي تحقیق هم راته وکړه
چې لږپوه شم په ماضي اومستقبل
په صیغوکې څه اعلال هم راته وکه
قوانین کړه راته شرحه پل په پل
په اصولومې دفقهې څه اګاه کړه
په خاص عام په مشترک اومؤل
څه ناڅه منطق حکمت هم ضروري دي
چې دنورعلم مشکل کړمه پرې حل
فصاحت اوبلاغت مې ډیرخوښیږي
معاني بدیع به وایومسلسل
انقلاب دی دومره بس دی کفایت کړي
که وخت راغی بیابه درس کړم مکمل
عرفاني کتاب دې بند که روانیږه
درومه درومه دغزاووترمورچل

## فلسفه د سنګر

(نصرت زرمتی)

راشئ او وګورئ مزه د سنګر
څه خوندوره ده لحظه د سنګر

میاشت کې به دیرش ورځې اختر وګورئ
له هر څه غوره ده لحظه د سنګر

جانان وعده کړې پرې اور حرام دی
چې روښه کړي وي چا شپه د سنګر

تل به مستور وي دسرور په جامو
ورځ ده له هر څه نه خوږه د سنګر

رب یې ستاینه په قران کې کړې
دفضایلو مجموعه ده سنګر

نادانه لږ ځان کې احساس پیدا کړه
په ځان کې راوله جذبه د سنګر

ته له سندرو ډرامو خونده اخله
څه اوریدلې دي نعره د سنګر

فکر کې ډوب یې تل دنفس او هوا
ولې دې مړه ده مفکوره د سنګر

مدام دمینې ناولونه ګورې
مطالعه کړه فلسفه د سنګر

شاعره ستایه یې مدام په قلم
شابه ژوندی کړه ولوله د سنګر

والله له هر څه نه ډیر خوند راکوي
راته بیان کړه خاطره د سنګر

نصرت یې اورمه په شوق او په ذوق
نن راته وکړه یوه قیصه د سنګر

## دشهید ګودرزیارت

( رضوان الله فیضانی )

دفلک ستوري مې شمار کړل ترسهاره
په تنها کوکوپښومې پل کړه هره لاره
ترمنزله مې لاپاته څه مزل شته
رسومه ځان دمینې تردیاره
خیردی خیرکه رقیبانو یې رنګ کړی
جوړوم دې بیاد عشق دنګه مناره
دسلام تحفه له ځانه سره یوسه
دجانان ترکلي ورشه ای رویباره
ستړی نه یم دشهید ګودرزیارت کړم
یم ولاړ دې لاتدې سیوري ته چناره
انقلاب دی ځکه تول سره ورك ورك یو
ځې پرمخ مې اوښکې ځکه بې اختیاره
پر اوښانومې غزلې رابار کړي
عرفاني لمن دې کړه ورته هواره

## شهید

(عبدالاحد حماد )

د ژوند له تنکۍ څانګې نه غاټول وښویږده
پرون د ډولۍ ناوې، نن په تش پالنګ کې ژاړي
له لاس یې د ښکلا حیاء سمبول وښویږده
اهداء چې یې امیل کړ د شهید اشنا اروا ته
له غاړې د سپوږمۍ نه ته وا شپول وښویږده
د ځوان بچې په قبر یوه مورکۍ له غمه ژاړي
وای دلته مې د ژوند د هیلو پسول وښویږده
شهید په هر یو کور په هر ملت کې لکه زړه دی
له نشت سره یې ژوند په هغه تول وښویږده
په مړو کې حساب دی فاتحه یې په ژوند اخله
چې زړه د کوم ملت د کوم کهول وښویږده
دیار د هجر پیتې حماد هسې په زړه مات کړ
له غمه یې شاعر او غزلبول وښویږده
دانه دانه لونګ د امیل تول وښویږده



# لاسپوڅې رسنۍ او ناڅرګند حقایق!

لیکنه: حامد نوري

امریکایي اشغال د افغان مؤمن ولس د کلونو کلونو تکلیفونه، قربانۍ، مهاجرتونه او دردونه څو برابره کړل، دوی پر افغانستان د یرغل تر څنګ ظلمونه، ناروا وژنې، ناامنۍ، فساد، فحشا، غصب، غربي وحشي کلتور، اقتصادي نا انډولۍ او نور افغانانو ته ډالۍ کړل.

د خپلو جنایتونو د پټولو او د مجاهدینو د جهادي کړنو د غندلو لپاره یې ډلییزې رسنۍ (راډیو، تلویزیون وېبپاڼې او چاپي رسنۍ) په کار وګمارلې، د خپل یرغل د توجیه، افغانانو ته د ځان ریښتوني ښودلو او پر ضد یې د هر ډول مقاومت د ځپلو په موخه د افغانستان د آبادۍ، امنیت، سواد، بشري او ښځو حقوقو او ډیموکراسۍ ناري سورې د همدغو ګوډاګیو او مزدورو رسنیو په واسطه افغان ولس ته ښه په درز سره ووډنګولې او لا ډنګوي یې.

د اشغال پر ضد د افغان مجاهد ولس د مقاومت له پیله دغو مزدورو رسنیو کوشش کړی چې روان پیاوړی مقاومت کمزوری او د کمو افغانانو غوښتنه او مقاومت وښیي.

اشغالګرو د څو ورځو په تېرېدو سره تلویزیونونه خپرولو ته چمتو کړل، د آزادۍ په نامه یې یوه راډیو جوړه کړه چې مصارف یې د امریکا کانګرېس ورکوي، ددې لپاره چې ددې راډیو خپرونې رڼې واورېدل شي په ټول هېواد کې یې آنتونه ورته نصب کړل، او د دوی تر بشپړ کنټرول لاندې یې ټوله ورځ په پښتو او فارسي ژبو خپرونې شروع کړې. همدارنګه د (آزادۍ غږ/صدای آزادي) په نامه یې په کابل او نورو ولایتونو کې ورځپاڼه تاسیس کړه چې په دریو (پښتو، فارسي او انګلیسي) ژبو خپرونې کوي، مالي لګښت یې پخپله آیساف په غاړه واخیست، چې پکې د دوی د مردود کلتور په اړه خپرونو، د دوی دروغجنو او مطلبي همکاریو خبرونو او د مجاهدینو د غندلو مسؤلیت په غاړه لري .

دې ورځپاڼې ته یې د کابل تر څنګ په نورو مهمو ولایتونو کې په عامه واټونو کې په ځانګړي ډول د مکتبونو، لېسو او کورسونو تر مخ بکسونه جوړ کړل، چې هره ورځ پکې دا ورځپاڼه اېښودل کېږي او په وړیا ډول یې تر ښاریان په ځانګړي ډول ځوان نسل ترلاسه کوي. همدارنګه د کلید په نامه یې د همدې ورځپاڼې سره وصل یوه اېف اېم راډیو او مجله چې په ښارونو کې خپرونې لري جوړ کړل، چې د یادو شوو اسلام دښمنه کارونو مسؤولیت په غاړه لري .

ددې تر څنګ د یرغل لا دوه میاشتې نه وې پوره شوي چې یو شمېر شخصي رسنیو هم په کار پیل وکړ. د بېلګې په توګه اسماعلیه آغا خان د طلوع تلویزیون او آرمان راډیو تاسیس کړل، د بیات په نامه یو کس د آریانا تلوزیون او راډیو تاسیس کړل، په همدې ډول د اشغالګرو نور مزدورانو یو پر بل پسې خپلې رسنۍ د افغان مسلمان ولس د بې لارۍ په موخه جوړې کړې، تر دې چې اوس د تلوزیونو شمېر یوازې په کابل کې له

پنځه ویشتو اوړي، چې دندې یې یوازې او یوازې د اشغالګرو لخوا ورته ورکړ شوي مسؤلیتونه دي.

له دغو رسنیو څخه یو هم اجازه نلري چې د مجاهدینو د عملیاتو خبر د آیساف د مطبوعاتي دفتر او نورو سلاکارانو له اجازې پرته خپور کړي .

آیساف لکه چې ټولو ته معلومه ده د ډېرې امنیتي پېښو خبرونه نه خپروي، یوازې د لویو پېښو خبرونه نشروي او هغه هم له دومره درواغو سره چې ټول ولس ته څرګند دي، ځکه خو په ولس کې د (ضرب د پنځه) ساده فورمول عام شوی دی. دا په دې معنا که ولس له درواغجنې رسنۍ د کومې جهادي پېښې خبر اوري چې په کې یو بهرنی عسکر وژل شوی او دوه ټپیان شوي دي نو خلک یې هم وژل شوي او هم ټپیان په پنځو کې ضربوي، تر څو د خپلو شازلمیو پر یوې کارنامې ځانونه په بشپړ ډول خبر کړي.

د دولتي او اشغالګرو د رسنیو پر ضد له نېکه مرغه مجاهدینو هم یو شمېر رسنۍ په کار اچولې دي. هغه خلک چې په بې پرې او ریښتینو خبرونو پسې ګرځي په مطلق اکثریت له دغو رسنیو استفاده کوي. کله کله د مزدورو رسنیو ویندویان دا هم وایي چې د حکومت او نړیوالو متحدینو (اشغالګرو) مخالفین د پېښې وژل شوي او ټپیان دومره ښیي، خو د دوی دا خبره هم د مجاهدینو لخوا له اصلي خپور شوي خبر سره په ټکر کې وي.

په دې برخه کې غواړم له هغو رازونو پرده پورته کړم چې په هېواد کې حاکم ګوډاګي، تر ستوني فاسد نظام او نورې شیطاني او دروغجنې رسنۍ یې له ښودلو او سپړلو ډډه کوي .

د امریکا په مشرۍ صلیبي جګړه دا دې تر یوولسو کلونو اوږده شوه، صلیبیانو پرته له دې چې زموږ د وطن د شازلمیو زرین تاریخ ته نظر وکړي؛ زموږ پر وطن یې یرغل وکړ، بې ګناه هېوادوال مو یې شهیدان، ټپیان او مهاجر کړل، په کلو، کورونو او جوماتونو یې بمونه واورول، او خپل غلامان یې پر افغان مجاهد ولس مسلط کړل. خو د انسانیت دغو بې رحمه درنده ګانو ته په نړۍ کې دومره څوک هم پیدا نه شول چې د ملامتۍ ګوته د ورته ونیوی شي.

د اشغالګرو او دولتي ګوډاګیانو یوائیني هیلې او مسؤلیت د افغان مجاهد او مېړني ولس تلپاتې غلامي، د اسلام له سپېڅلي دین سره تړاو کمزوی کول او په وروورو یې له منځه وړل، د غرب منفور، بربنډ او له انساني اصولو سره په ټکر کې کلتور پکې رواجول، او په دې شهادت پاله خاوره کې د بهرني اشغال پر ضد د هر ډول مقاومت ځپل دي. چې د مزدورو رسنیو نه له ورایه څرګند یږي.

دوی د یرغل پر مهال دا خوبونه لیدل چې دا پروژې به حتماً بشپړوو خو حالات سرچپه شول، له دوی سره د افغان مسلمان ولس شته کرکه ورځ تر بلې په زیاتېدو شوه. دوی کوشش وکړ چې د پیسو، وسلو او زهرجنو تبلیغاتو په زور دغو هدفونو ته ورسېږي، چې یو شمېر بې ضمیره، له آره ګوډاګي او تش په نامه افغانان یې خپل هم کړل، خو افغان مجاهد ولس یې دا هڅه له خاورو سره برابره کړه. ورپسې یې د زیات تشدد او ظلم پالیسي تر کار لاندې ونیوله، خو دا یې هم ځکه په مغز کې خنثٰی شوه چې افغانانو د خپل تېر تاریخ په څېر دا ځل هم دا د تنګ ډګر پر خپلو قربانیو بدرګه کړ او صلیبي اتحاد یې له داسې شرموونکې ماتې سره مخامخ کړی چې اوس له سیمې نه د تېښتې لارې لټوي.

دا دې د الله (ج) په فضل او مهربانۍ د دنیا همدغه کبرجن کفري قوت پر خپلې ماتې اعتراف کوي، او وایي چې موږ باید له افغانستانه خپل ځواکونه وباسو. دوی اوس د خپلو ځواکونو د ایستلو لپاره پر دې فکر کوي چې دومره وشي چې زموږ د همدغو بریځو او غلامانو حکومت پاتې شي.

دا دې د دوی د یو راپور له مخې چې په دې وروستیو کې د امریکا د کانګرس د یو غړي له خوا پکې ویل شوي دي له ۲۰۰۱ م څخه تراوسه یوائې د امریکا ۲۰۵۰ پوځیان وژل شوي دي. چې د دې څو برابره یې ټپیان دي، خو دا شمېره له حقیقت څخه ډېره کمه ده ځکه دوی خپل تلپات کم ښیي. په همدې ډول د دوی نړیوالو متحدینو پوځیانو ته هم د سر درانه زیانونه اوښتي دي. همدا رنګه د اشغالګرو روحي وضعه هم ډېره خرابه ده، څه موده وړاندې د امریکا د دفاع وزارت د یو راپور له

مخې ویل شوي وو چې تېر کال په امریکا کې د هغو پوځیانو ځانوژنه چې ښایې د یو څه مودې پوځي ماموریت لپاره افغانستان ته ولېږل شي د ورځې یو پوځي ښودل شوی ؤ، یعنې په کال کې ۳۶۵ پوځیانو د افغانستان د جګړې له هیبته په امریکا کې ځانوژنې کړې. په افغانستان کې د جنګېدونکو پوځیانو شمېره خو لا کره نه ده.

دا دي اوس به داسې افغان نه وي چې د دوی په دغو شیطاني دسیسو او له وړاندې طرح شوو پلانونو به خبر نه وي. د چا له خولې چې افغانانو د دولت او اشغالګرو منفور کفري شعارونه لکه دېموکراسي، مجاهدینو ته د تروریست نوم اخیستل، د ښځو او نرو مساوي حقونه، او داسې نورې ناولې کلیمې اورې افغانان ورته د ګوډاګي، مفسد، غلام او منافق خطاب کوي. د جهاد او مجاهدینو پر ضد د ګوډاګیو رسنیو له څلورویشت ساعته تبلیغاتو سره سره دا دی په هېواد کې د اشغالګرو او د هغوی د ګوډاګیانو پر ضد مقاومت ملي بڼه غوره کړې! دا دي دغه سپېڅلې جهادي څپې له هراته نیولې تر بدخشانه او له فاریابه تر کنړه په ټول افغانستان کې په پوره قدرت سره موجونه وهي، چې لامل یې د دې شهادت پال ولس ایماني، وجداني او ملي وجایب دي. اوس الحمد لله د افغان ولس جهاد ملي او بین المللي ارزښت پیدا کړی، نور یې په حقانیت، ځواک او ګړندیتوب هېڅوک سترګې نه شي پټولی او نه پرې پرده غوړولی شي.

خو افسوس د هغو بې ضمیره، خاینو او جنایتکارو خبریالانو، ویندویانو، لیکوالانو، شاعرانو او تخنیکي کارکوونکو په حال باندې چې د څو ډالرو په بدل کې د اشغالګرو تر بشپړ تسلط لاندې په یو شمېر اسلام او افغان دښمنو رسینو کې په غلامۍ بوخت دي. دوی غواړي چې د الله رڼا د خپلو ناولو خولو په وسیله تته او ورکه کړي خو الله د خپلې رڼا روښانه کوونکی او پوره کوونکی دی ولو که د کفارو خوښه نه وي !!

د ګوډاګي رژیم فرهنګیان دې په دې پوه وي چې که دا ځل صلیبي ښکېلاک له پرمختللې ټکنالوجۍ سره زمونږ د ګران هېواد استقلال له خنډ سره مخامخ کړي او تاسو زمونږ د صلیبي لښکرو پر ضد د الله لپاره د جهاد پیاوړي موجونه په خپلو تبلیغاتو کمزوري ښیئ!!! که ستاسو باداران له هر قسم پرمختللو وسلو سره زمونږ شازلمي شهیدوي، زمونږ غازیان هم دومره لاسرسی ټکنالوجۍ ته لري چې ستاسو د اسلام دوښمنه کړنو ثبوتونه ستاسو د محاکمې لپاره وساتي.

د ټولې اسلامي نړۍ او په ځانګړې ډول د ګران افغانستان د آزادۍ او پکې د صلیبي اتحاد د ماتې او بربادۍ په هیله.

## څلور غوره کړنې

رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: په تاسو کې نن چا روژه نیولې وه؟ ابوبکر رضی الله عنه وویل: ما، هغه وویل: په تاسو کې نن چا د جنازې لمونځ کړی ده؟ ابوبکر رضی الله عنه وویل: ما، هغه وویل: په تاسو کې نن چا مسکین ته ډوډۍ ور کړې ده؟ ابوبکر رضی الله عنه وویل: ما، هغه وویل: په تاسو کې نن چا د ناروغ پوښتنه کړې ده؟ ابوبکر رضی الله عنه وویل: ما، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: دا څلور کارونه چې په یوه ورځ کې څوک وکړي هغه به خامخا جنت ته داخلیږي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قالَ: قالَ رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم: مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ صَائِمًا؟ قالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه: أَنَا. قالَ: فَمَنْ تَبِعَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ جَنَازَةً؟ قالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه: أَنَا. قالَ: فَمَنْ أَطْعَمَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مِسْكِينًا؟ قالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه: أَنَا. قالَ: فَمَنْ عَادَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مَرِيضًا؟ قالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه: أَنَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم: مَا اجْتَمَعْنَ فِي امْرِئٍ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ. أخرجه مسلم

# لومړی نړیوال جنګ

# او په اسلامي امت یې اغیزې

قاري عبدالستار سعید

سل کاله پخوا د ۱۹۱۴ م کال د جولای میاشت وه چې د اروپا په زړه کې دیوې جګړې اور ولګید ،دا جګړه چې په پیل کې ددوو هیوادونو اتریش او صربستان ترمنځ وه وروسته یې ټولې اروپا او حتی دنړۍ ټولو براعظمونو ته سرایت وکړ، جګړې د ۱۹۱۸ م کال ترنومبر میاشتې پورې څه باندې څلور کاله دوام وکړ، خو په دې موده کې یې نړۍ او بشریت ته داسې زیانونه واړول چې تردې پخوا کومې جګړې نه واړولي ، همدا لامل و چې داروپایانو دا جنګ لومړی نړیوال جنګ وبلل شو.

د لومړي نړیوال جنګ عوامل

د شلمې پیړۍ په پیل کې که د اروپا وضعیت مطالعه کوو، نو پنځه مطرح قوتونه مو مخې ته راځي چې دغه مهال یې ترمنځ د ځواک سیالي روانه وه، انګلستان ، فرانسه ،المان، د روسیې تزاري امپراطوري او د اتریش – هنګري امپراطوري چې په دې لیکنه کې تر یوازې په اتریش سره تعبیر کوو.

دې زبرځواکونو په پرلپسې توګه ترخپل منځ رقابت ته ادامه ورکوله، دا مهال چې په اروپا کې نشنلیزم اوج ته رسیدلی و، هر هیواد غوښتل چې ځان پر نورو د برلاسۍ ستیج ته پورته کړي،دوی ټولو په آسیا ، افریقا ،امریکا او سمندرونو کې مستعمرات هم لرل چې ډیر ځله یې د جنجال باعث د یو بل په مستعمراتو کې لاسوهنه وه، په دې سربیره د خامو موادو دمنابعو په سر شخړې او په سرحدي سیمو کې ارضي جنجالونه هم اوج ته رسیدلي وو.

دې پنځو قوتونو یو دبل په وړاندې پټ ایتلافونه هم لرل او ځیني ښکاره سیالۍ او جنجالونه یې هم ترمنځ موجود و،د بیلګې په توګه د روسیې او اتریش ترمنځ له ډیره وخته د بالکان په سیمه کې سیالي روانه وه، فرانسې او المان چې دنولسمې پیړۍ په اتیایمو کلونو کې سخت جنګونه سره کړي وو اوس یې هم په ځینو سیمو لانجې ترمنځ پاتې وې، المان او انګلستان بیا په اقتصادي، او صنعتي ډګر کې دغه راز په سمندرونو د سلطې په برخه کې په پراخه سیالي بوخت وو، فرانسې او روسیې بیا ترخپل منځ یو پټ تړون درلود چې په سختو حالاتو کې به یو دبل مرسته کوي، المان له اتریش سره دګډ نژاد له امله تودې اړیکې او یارانه درلود ،ددوی په ګاونډ کې دغه مهال بل مطرح ځواک د ترکیې عثماني امپراطوري وه، عثماني ترکانو له المان سره تودې اړیکې درلودې، او تر واک لاندې سیمې یې د الماني مصنوعاتو لپاره د مناسب بازار حیثیت درلود، عثماني ترکانو له المان پرته له نورو اروپایانو سره ښې اړیکې نه درلودې، ځکه روسانو ترې په قفقاز کې سیمې نیولې وې، انګلیسانو ترې مصر ، دفارس خلیج او سره

سمندرګي دغاړو ځيني سيمې قبضه کړې وې، فرانسې ترې المغرب او الجزائر نيولي وا او ايټاليا ترې ليبيا او تونس قبضه کړي وو.

په همدې وضعيت کې چې د اروپا دغه د ځواک په نشه مست هيوادونه يوله بله په ويره کې وو او هر يوه بل ته د شک په سترګه کتل، د يوې خطرناکې جګړې لپاره وضعيت په پوره توګه اماده و چې يوازې يې يوې بهانې ته اړتيا درلوده.

همدا بهانه د ۱۹۱۴ م کال د جون په ۲۸ مه موجوده شوه، د اتريش امپراطورۍ له روس پلوه صربستان سره سخته دښمني درلوده، په همدې ورځ د اتريش د امپراطورۍ وليعهد آرشيدوک فرديناند د يو صرب اتريشي لخوا ووژل شو، اتريش دا قتل د صربستان کار وباله او صربستان ته يې اخطار ورکړ چې که د دې قتل د تحقيق لپاره اتريشي پلاوي ته د تحقيق اجازه ورنکړي نو بريد به وربانديې وکړي، صربستان د اتريش نور شرطونه ومنل مګر د اتريشي پلاوي لخوا په صربستان کې د پلټنو شرط يې رد کړ، په همدې کې د المان مشر اتريش ته ډاډ ورکړ چې که په صربستان حمله وکړي، المان به يې په ټول قوت ترشا ودريږي، همدا لامل و چې اتريش صربستان ته چې روسيه يې په کلکه ترشا ولاړه وه د جنګ اعلان وکړ.

## جنګ پراخيږي

د ۱۹۱۴م کال د جولای په ۲۸ مه اتريش صربستان ته د جنګ اعلان وکړ، څرنګه چې صربستان د روسيې متحد و، او په يوازې ځان يې د اتريش دفاع نه شوای کولای، روسيې د اتريش په مقابل کې د جنګيدو لپاره خپل ځواکونه اماده کړل، او د فرانسې لخوا په ورکړل شوي ډاډ يې له صربستان څخه د دفاع ټينګه وواهه، په قضيه کې د روسيې مداخلې د اتريش متحد المان ته ټکان ورکړ دوه ورځې وروسته د اګست په لومړۍ نيټه د المان د قيصر لخوا تزاري روسيې ته د جنګ اعلان وشو، المان د اګست په دريمه په فرانسه هم حمله وکړه او د فرانسې په خوا يې خپل ستر عمليات چې له وړاندې يې ورته طرح جوړه وه پيل کړل.

المان چې دا مهال يو کمساری نړيوال ځواک بلل کيده، له پخوا يې هڅه کوله چې خپل اروپايي سيالان په تيره فرانسه او روسيه وټکوي، د همدې لپاره دوی له وړاندې طرح داسې جوړه کړې وه چې لومړی به د غرب په خوا پراخ عمليات صورت نيسي ترڅو فرانسه تس نس کړي، د فرانسې له نيولو وروسته به په شرق کې په روسيه ګوزار کيږي، المان په يو پراخ بريد کې د فرانسې په خوا پرمختګ ته ادامه ورکړه، په دې لړ کې المان اړ و چې بلژيک هيواد چې د فرانسې په لاره پروت هم تر پښو لاندې کړي، څرنګه چې بلژيک هيواد په دې جګړه کې بې طرفه و د المان لخوا په بلژيک بريد بريتانيا وپاروله، نوځکه د اګست په څلورمه بريتانيا هم المان ته د جنګ اعلان وکړ، په وروستيو څو ورځو کې مونټه نيګرو او جاپان هم د المان په وړاندې په جګړه کې ور ګډ شول، جګړه چې ټوله اروپايي نيولې وه، نورو وچو ته هم وغځيده، په لرې ختيځ، بحرالکاهل او افريقا کې يو د بل په مستعمراتو بريدونو پيل شول، د نړۍ نور هيوادونه هم په جګړه کې ور ګډ شول تر دې چې د جګړې ترپايه له دواړو خواوو د جنګيدونکو هيوادونو شمير ۲۸ ته ورسيد، له دې جملې المان، اتريش، عثماني امپراطوري او بلغاريه په يوه صف کې و چې محور قواوې ورته ويل کيدې او په مقابل کې يې ۲۴ اروپايي، امريکايي او اسيايي هيوادونه وو چې متحدين يې بلل.

د جنګ په پيل کې چې المان د فرانسې په خوا کوم عمليات پيل کړل، بلژيک او د فرانسې د خاورې ځيني برخې يې لاندې کړې، خو د فرانسوي انګليسي او بلژيکي ځواکونو د سرسخت مقاومت له امله يې پرمختګ په ټپه ودريد، تر دې

چې دواړه خواوې دسنګرونو په کيندلو او ثابت جنګ په دوام مجبور شول، په دې جبهه کې يوه ستره پيښه د بلژيک حدودو کې رامنځته شوه، دمتحدينو قواوو دالماني ځواکونو د لومړي خط تر پښولاندې ځمکې ته تونلونه ورتير کړل، دوی دالماني ځواکونو ترپښو لاندې په ۱۹ تونلونو کې ۴۱۰ ټنه منفجره مواد ځای په ځای کړل او بيا يې په يوځل انفجار ورکړ، دا انفجار چې غږيې ۲۲۵ کيلومتره لرې په لندن کې واوريدل شو، د لس زره الماني ځواکونو په وژلو يې ددې هيواد لومړی کرښې ته دروند زيان واړاوو.

المان که په لويديځ کې له بن بست سره مخامخ و په ختيځ کې يې برلاسی دريځ درلود په ختيځ کې الماني ځواکونو د تزاري روسيې لښکرو ته پرلپسې ماتې ورکړې ۱۲۵ زره روسي عسکر يې ژوندي ونيول او پراخې سيمې يې ترې لاندې کړې، په همدې مهال داتريش او صربستان په جبهو کې هم جګړه زور نيولی و، ايټاليا د جګړې په پيل کې دالمان او اتريش متحده وه خو د ۱۹۱۵ په مې مياشت کې يې لوری بدل کړ او د متحدينو په صف کې ودرېده، په مستعمراتو کې هم مهال جګړې زور واخيست، د افريقا په کاميرون، توګو او ګنو نورو ساحلي سيمو کې متحدينو په الماني مستعمراتو او پوځي اډو بريدونه پيل کړل، له بلې خوا ۶۰ زره جاپاني ځواکونو د چين په ساحل د المان په ستره اډه چينګ تايوي باندې پراخ بريد وکړ، دغه راز د فالکلند او لري ختيځ په حوزو کې هم انګليسي او الماني ځواکونو سره ونښتل، د مستعمراتو په جګړو کې المانيان يوازې د افريقا د ختيځ تانګا بندر په جګړه کې بريالي شول او په نورو جګړو کې يې له اروپا بهر تقريبا ټول مستعمرات له لاسه ورکړل او ځواکونه يې له مقاومت وروسته متحدينو ته تسليم شول.

## عثماني خلافت په جنګ ورګډېږي

د شلمې پيړۍ په پيل کې که داسلامي نړۍ وضعيت تحليلوونو په لنډو يې انځور داسې وړاندې کولای شو، په افريقايي لويه وچه کې ټول اسلامي هيوادونه د فرانسې، ايټاليا اوانګلستان لخوا اشغال شوي و، هند او اوسنی پاکستان هم د انګلستان مستعمره و، ايران د روسيې او انګلستان ترمنځ په منځ نيم شوی او دنفوذ په سيمو ويشل شوی و، دبالکان ټاپووزمه او قفقاز په سيمو کې اسلامي خاورې روسيې له عثماني ترکانو لاندې کړې وې، د منځنۍ اسيا اسلامي هيوادونه هم د روسانو تر تسلط لاندې و، په درسته نړۍ کې يوازې افغانستان، د عثماني امپراطورۍ ملحقات او د جزيرة العرب ځيني صحرايي سيمې وې چې مسلمانانو پرې په خپله تسلط درلود، په اسلامي نړۍ کې يوازې عثماني خلافت ځواکمن هيواد و چې په ترکيه، دبالکان په ځينو سيمو، او د منځني ختيځ په عربي هيوادونو يې سلطه درلوده.

عثماني امپراطوري دا مهال دخپل تاريخ په ترټولو بدحالت کې وه چې اروپايي سيالانو يې پرې د (مريض شخص) نوم ايښی و، ترکان چې څو پيړۍ يې په اروپا سيورې پروت و، په وروستيو کې دنويو علومو او تخنيک په چاره کې له اروپايي سيالانو وروسته پاتې وو او همدې چارې پرې پخواني رقيبان زړور کړي وو.

کله چې د عثماني خلافت سيالان روسيه، فرانسه او انګلستان له پياوړي المان سره په جګړه بوخت او سخت وځپل شول، عثماني ترکانو وليدل چې المان په جګړه کې برلاسی دی، عثماني ترکانو له المان سره د تودو اړيکو درلودلو له امله او په دې هيله چې له ځپل شويو متحدينو به انتقام واخلي او پخوانۍ نيول شوې سيمې به بيرته ترې ولجه کړي، د ۱۹۱۴ م کال د اکتوبر په ۲۹ مه په جګړه ورګډ او دالمان په پلوۍ يې د متحدينو په خلاف د جګړې اعلان وکړ.

عثماني ترکانو داهیله هم درلوده، چې داروپايي استعمارگروسره په جګړه کې له ښکیلتیا وروسته به په ټوله اسلامی نړۍ کې داستعمارګرو په خلاف د جهاد په فتوی سره مسلمانان راپورته او اروپایان به له اسلامي سیمو وشړي.

خو داچې د عثماني ترکانو اصلي هدف د بایللو سیمو بیرته ترلاسه کول و، دهمدې لپاره دوی لومړی قفقاز ته د جنرال انور پاشا په مشری سلګونه زره پوځیان ولیږل، ترڅو روسان چې په ختیځه اروپا کې له المان سره په جګړه بوخت و، په دام کې ښکیل کړي ،خودې لښکر د قفقاز په لوړو کې له درنو جګړو وروسته سخت شکست وخوړ، ویل کیږي د قفقاز په جګړه کې تر ۹۰ زره ډیر ترکي پوځیان ووژل شول چې ډیری یې د سړې هوا او یخ وهلو له امله مړه شول، ترکانو بل لښکر د سوریې د حاکم جمال پاشا په مشری د سینا د ښتې له لارې د مصر په خوا سوق کړ،دې لښکر د المانیانو په ملاتړ کوښښ کاوو چې د سویز کانال په نیولو سره له ختیځو مستعمرو سره د انګلیسانو رابطه قطعه کړي، ځکه انګلیسانو په پرلپسې توګه له خپلو مستعمراتو څخه په جګړو کې دانساني او مالي منابعو په حیث استفاده کوله، داسې ویل کیږي چې حتی په لویدیځه اروپا کې دبریتانیا د پوځ یوپه دریمه برخه هندي مرتزقه وسلوال وچې دالمان په ضد جنګیدل، په لومړی نړیوال جنګ کې د ټولو جنګیدلیو هندیانو شمیر تر یو ملیون زیات بلل شوی دی چې دانګلیس په ملاتړ جنګیدل.

د سویز کانال په جګړه کې هم ترکي لښکرو شکست وخوړ او تر غزې پورې یې شاتګ وکړ، ترکانو د قفقاز د جبهې غوندې په جزیرة العرب کې پرلپسې بدې ماتې وخوړې، بغداد ، کویټ او بیت المقدس دانګلیسي لښکرو لخوا ونیول شول، انګلیسي لښکرو حتی د سوریې تر حلب پورې پرمختګ وکړ، د انګلیسانو په پرمختګ کې ستر کردار د ترکانو په خلاف دعربود پاڅون و، چې د لویدیځوالو په تاریخ کې د انګلیسي جاسوس ایډورډ لارنس کارنامه بلل کیږي، دغه انګلیسي جاسوس چې څو لسیزې یې په عربو کې کار کړی و، او عرب یې د ترکانو په خلاف لمسولي و په پای کې بریالی شو چې دمکې مکرمې والي حسین بن علی چې په شریف حسین مشهور و، د لومړۍ نړیوالې جګړې په سختو شرایطو کې د عثماني خلافت په خلاف پاڅون ته تشویق کړي، شریف حسین چې د ترکانو لخوا دمکې مکرمې والي ټاکل شوی و لوری یې بدل کړ او دانګلیسانو په اشاره یې له ترکانو د استقلال پاڅون پیل کړ، نوموړي چې په قاهره کې د مصر او عربي نړۍ لپاره دځانګړي انګلیسی دفتر لخوا لوبیده، عرب قبایل یې د ترکانو په خلاف جنګ ته وهڅول، انګلیسانو له دوی سره د منفجره موادو مرسته کوله ترڅو د جزیرة العرب په لراوبر کې د ترکانو لخوا د ریل ګاډي غځول شوي کرښې والوځوي او د ترکي پوځ داکمالاتو مخه ونیسي ، دعربو پاڅون په جزیرة العرب کې ترکي پوځونه له ډیرو ستونزو سره مخامخ کړل او د انګلیسانو بریا ته یې لاره هواره کړه.

## د ګالیپولي جګړه

د لومړي نړیوال جنګ په ترڅ کې د ګالیپولي په ټاپوزمه کې پیښه شوې جګړه یوازینۍ جګړه وه چې عثماني ترکانو په کې خپل جګړه ایز هنر ننداري ته وړاندې کړ او اروپایي متحدینو ته یې سخت شکست ورکړ، عثماني ترکانو د جګړې له پیله د تورې بحیرې او مدیترانې بحیرې ترمنځ د باسفور او دردنیل په تنګیو کنترول درلود ، دې چارې د انګلیس او فرانسې ستر متحد روسیه له دې منعه کړې وه چې خپل سمندري ځواکونه د جګړې جنوبي او لویدیځو جبهاتو په خوا سوق کړي، دهمدې خنډ دلرې کولو لپاره متحدینو فیصله وکړه چې په هر قیمت وي باید یاد تنګي په تصرف کې راوستل شي.

ونستن چرچیل چې وروسته د بریتانیا نخبه سیاستوال شو، دغه مهال د بریتانیا د سمندري قواو مشر و، نوموړي د دردنیل تنګي او ورپسې د استانبول د نیولو لپاره ددې جګړې نقشه جوړه کړه او په لکونو ځواکونه یې دې سیمې ته سوق کړل، جګړه د ۱۹۱۵ کال په فبرورۍ کې لومړی په سمندري کښتیو او سمندر غاړو کې پیل شوه او وروسته د ګالیپولي په ټاپوزمه کې راټوله شوه ، په دې جګړه کې ۴۹۰ زره برتانوي او ۷۹ زره فرانسوي ځواکونه ښکیل و چې مشري یې د چرچیل په غاړه وه، د عثماني ترکانو لخوا د مصطفی کمال /اتاترک په مشرۍ ۳۱۵ زره پوځیان جنګیدل، جګړې په میاشتو میاشتو دوام وکړ او دواړو خواوو ته سخت تلفات ورسیدل، اروپایانو ټول وس وکړ چې په درد نیل تنګي سلطه راولي خو ترکانو سخت مقاومت وکړ، تاریخ لیکي: په دې جګړه کې د ترکي لښکر د مشر شعار دا وو: زه تاسو ته دا نه وایم چې ګالیپولي ته لاړ شئ او وجنګیږئ بلکې درته وایم هلته لاړ شئ او مړه شئ.

په دې جګړه کې چې د ۱۹۱۵م کال په دسمبر کې د اروپایانو په شکست پای ته ورسیده څه کم دوه نیم لکه د متحدینو ځواکونه او تر یو نیم لک زیات د عثماني امپراتورۍ ځواکونه ووژل شول، دهمدې جګړې بریا ترکي سرلښکر مصطفی کمال ته غیر معمولي شهرت ورکړ، او نوموړی د عثماني خلافت په وسلوالو ځواکونو کې د یو محبوب مشر په حیث مطرح شو، مصطفی کمال وروسته له همدې اعتبار او شهرت څخه په استفاده ترکي پوځیان د خلافت په خلاف بغاوت ته وهڅول، عثماني خلافت ته یې د پای ټکی کیښود او نوې په سیکولر نظام ولاړه ترکیه یې رامنځته کړه .

## د جګړې وروستۍ صحنې

په ۱۹۱۷ م کال کې سره له دې چې دجګړې درې کاله تیر شوي و او له دواړو خواوو په میلیونو کسان وژل شوي و، جګړه کاملا د بن بست له حالت سره مخامخ وه،د جګړې په اصلي کرښه لویدیځه جبهه کې د المان او متحدینو ترمنځ ثابته لومړۍ کرښه پرته وه او په یوبل یې ډزو او بمبارونو ته ادامه ورکوله دجګړې دا کرښه چې له ژورو خندقونو جوړه وه، د مانش له دریاب څخه بیا تر سویس پورې غځیدلې وه چې ۶۵۰ کیلومتره اوږدوالی یې درلود.

المانیان چې په ځمکنۍ جګړه کې له بن بست سره مخامخ وو هڅه یې وکړه چې هوایي او سمندري جګړه پیل کړي، دوی ددښمن په ښارونو او جنګي کرښو بمبارونو ته زور ورکړ، له بلې خوا یې د اوبتلونو په توسط د مخالفینو په کښتیو بریدونه پیل کړل،د سمندري جګړې په ترڅ کې المان په پرلپسې توګه څو انګلیسي بیړۍ غرقې کړې، دغه مهال چې دامریکا متحده ایالت د یو غیراروپایي زبرځواک په حیث بې طرفه دریځ درلود، دجګړې له دواړو خواوو سره یې د قرضونو د ورکړې او وسلو پلورلو معاملې درلودې،خو څرنګه چې امریکایان متحدینو ته ډیر ورنږدې و، المان نه خوښول چې امریکایي بیړۍ دې متحدینو ته مرستې ورسوي،الماني اوبتلونو د ۱۹۱۷ م کال په اپریل کې په اطلس بحر کې په امریکایي بیړیو برید وکړاو له سپرو امریکایانو سره یې ډوبې کړې، ددې پیښې په تعقیب دامریکا ولسمشر ویلسن د المان په خلاف د جګړې اعلان وکړ،او خپل تازه دمه ځواکونه یې د جګړې جبهاتو ته ولیږل.

که په جګړه کې د تازه دمه امریکایانو شاملیدل د متحدینو لپاره ښه زیری و، خو بله غاړه د همدې کال په اکتوبر کې په روسیه کې د ولادیمیر لنین او تروتسکي په مشرۍ بلشویکانو انقلاب وکړ، تزاري سلطنت یې چپه کړ، او له

کامیابۍ سمدستي وروسته يي په نړیواله جګړه کې خپله بې طرفي اعلان کړه، د جګړې له صف څخه د روسانو وتل متحدینو ته بد خبر و.

د ۱۹۱۸م کال په مارچ کې المانیانو په لویدیځه جبهه کې یوځل بیا زورآزمایل پیل کړل، دوی د متحدینو په کرښه پراخ عملیات پیل کړل، دمتحدینو ځواکونه يي پرشا کړل خو المانیان د پاریس په نیولو ونه توانیدل.

دهمدې کال په جولای کې متحدینو دفرانسوي جنرال فردیناند فوش تر مشرۍ لاندې په الماني کرښه ځوابي برید پیل کړ، او المانیان يي له ماتیدونکي حالت سره مخامخ کړل،دغه مهال چې دجګړې ټولې خواوې سختې ځپل شوي وې، په میلیونونو عسکري يي له لاسه ورکړي وو او اقتصادي بنسټونه يي له پښو لویدلي و، المانیان په دې پوه شول چې نور جګړې ته دوام نه شي ورکولای، دوی لومړۍ د همدې کال د نومبر په ۱۱ نیټه په لویدیځه جبهه کې له متحدینو سره د موقت اوربند قرارداد لاسلیک کړ، له همدې فرصت نه په استفاده د المان قیصر ویلیم ۲ واک پرېښود او هالنډ ته وتښتید، په المان کې نوي انتقالي حکومت واک په لاس کې واخیست او همدا تغیر د المان د شکست منلو په معنی و.

له شکست منلو وروسته جنګ عملا پای ته ورسید او دمتحدینو لخوا له المان، ترکیې او اتریش څخه د تاوان اخیستلو بهیر پیل شو، د وارسا موافقت نامه چې د ۱۹۱۹م کال په جون میاشت کې په المان باندې تحمیل شو،دا هیواد يي تر سختو محدودیتونو او غرامتونو لاندې ونیو. دبیلګې په توګه متحدینو په المان ومنله چې : دالمان ټولې جنګي او تجاري بیړۍ به انګلیستان او فرانسې ته ورکول کیږي، المان به همدې هیوادونو ته څو کاله کښتۍ جوړوي ،المان به په ټولو هیوادونو او مستعمراتو کې په خپلو شتمنیو سترګې پټوي او متحدینو ته به يي بښي،المان به پنځه زره ارابې اورګاډي او یونیم لک موټر د متحدینو لپاره تولیدوي،المان به لس کاله زیات مقدار زغال سنګ فرانسې ، بلژیک او ایټالیا ته صادروي،المان به ۶ ملیارده او ۶۰۰ ملیونه سترلینګ لیره په نقدي توګه متحدینو ته ورکوي، المان به د سارد ډبرو سکرو کان ۱۵ کاله فرانسې ته پرېږدي ترڅو هغوی چې څومره يي خوښه وي زغال ترې وچلوي، المان به د سمندري او هوايي ځواکونو د درلودلو حق نلري ، اضافه عسکر به نه جلبوي، خپل پوځي ځواک به یوازې سل زره عسکرو ته راټیټوي چې ټانګونه او درنې وسلې به نلري.

په لوړو قیودو سربیره دغه پریکړه لیک نور هم ګڼ هیښوونکي مواد درلودل چې له امله يي المان پراخې ځمکې له لاسه ورکړې، دغه راز يي د خپلو ملي شتمنیو له جملې ۵۵ فیصده د اوسپنې، ۴۵ فیصده د زغال سنګ، ۷۵ فیصده د جستو او ۵۷ فیصده د سرپو کانونه له لاسه ورکړل ،دهمدې پریکړه لیک سخت شرایط باعث شول چې په المان کې ملتپالنه او دنورو اروپایانو په نسبت د کرکې احساس وده وکړي او په حقیقت کې همدا پریکړه لیک ددوهم نړیوال جنګ باعث شو، هغه جنګ چې له نړیوال او يي لومړنی نړیوال جنګ هیر کړ.

هغه ارقام چې په وروستیو کې په ډاګه شوي وايي چې په لومړي نړیوال جنګ کې د فرانسې څلور میلیونه او سل زره کسان ووژل شول چې ددې هیواد د ټول نفوس یو په لسمه برخه تشکیلوي، دغه راز د المان ۳ میلیونه ، دبریتانیا اوه نیم لکه ، دامریکا یو لک او پنځلس زره او د روسیې ۷ میلیونه او سل زره کسان ووژل شول، په جګړه کې په ملیونونو کسان معیوب او زخمیان هم شول او نږدې پنځه ملیونه انسانان په کې نادرکه شول.

## په اسلامي نړۍ د لومړۍ نړیوالې جګړې اغیزې

لومړۍ نړیوالې جګړې ټولې خواوې زیانمنې کړې چې په دې لړ کې یې اسلامي نړۍ ته هم پراخ زیانونه واړول او ډیر تغیرات یې راوستل، دمحور قواوو له شکست سره عثماني امپراطوري هم متحدینو ته تسلیم شوه، د عثماني ترکانو همدا شکست په حقیقت کې ددوی د ۸۰۰ کلنې امپراطورۍ د سقوط او پای په معنی و، د ۱۹۲۰ م کال په اګست کې متحدینو په عثماني ترکانو باندې هم یو داسې شرموونکې معاهده لاسلیک کړه لکه په المان یې چې تحمیل کړې وه، دغه معاهده چې د سورپه ښار ګوټي کې د متحدینو او عثماني ترکانو ترمنځ لاسلیک شوه، عثماني خلافت په کې عملا له منځه لاړ، په معاهده کې عثماني ترکانو ومنله چې په اسیا، اروپا او افریقا کې به ټولې ځمکې او د ترکیې د اصلي خاورې ګڼې ساحلي سیمې له لاسه ورکوي او متحدینو ته به یې پریږدي، په دې توګه عثماني خلافت ۸۰ فیصده تر واک لاندې سیمې له لاسه ورکړې، ترجګړې پخوا دعثماني امپراطورۍ وسعت ۳ میلیونه مربع کیلومتره ته رسیده خو ددې پیمان له مخې د عثماني امپراطورۍ د واک ساحه ۶ لکه مربع کیلومتره ته راکمه شوه، په دې سربیره په عثماني ترکانو ومنل شوه، چې باسفور او دردنیل تنګي چې دا وخت عملا د متحدینو لخوا اشغال وو بین المللي قواوو ته به یې پریږدي، دریای اژه او په مدیترانه کې مهم ټاپوګان به ایټالیا او یونان ته ښې، په اسیایي برخه کې به د ترس او ازمیر ساحلي ښارونه یونان ته ښې، په شمال ختیځ که به د ارمنیانو دولت په رسمیت پیژني، په جزیرة العرب کې دانګلیسانو لخوا رامنځته شوي هیوادونه به هم په رسمیت پیژني او کردانو ته به د خودمختاره حکومت جوړولو حق ورکوي.

ددې معاهدې له مخې جزیرة العرب رسما دعثماني ترکانو له لاسه ووتله چې د فرانسې او انګلستان ترمنځ د سایکس - پیکو تړون له مخې عراق، کویټ، اردن، او فلسطین دانګلیسانو مستعمره شول او سوریه او لبنان د فرانسې په برخه ورسیدل، دعثماني امپراطورۍ لخوا دامعاهده چې سیاسي مشرانو لاسلیک کړې وه، د ترکي پوځیانو لپاره دمنلو وړ نه وه، همدا لامل و چې پوځیانو پر لپسې مخالفت ته ادامه ورکوله، مصطفی کمال پاشا چې په نړیواله جګړه کې یې نوم ګټلی و، د خلافت دمشر تابه په خلاف د ترکي پوځ له همدې نارضایت څخه ګټه پورته کړه، ناراضه پوځیان یې بسیج کړل او د خلافت په وړاندې یې بغاوت وکړ، مصطفی کمال عثماني خلافت رنګ کړ، د متحدینو لښکرې یې د ترکیې له اصلي سیمو وایستلې او په سیکولر نظریه ولاړه نوې ترکیه یې رامنځته کړه، د عثماني خلافت په رنګیدو سره دمسلمانانو هغه نړیوال قوت له منځه لاړ، چې پیړۍ پیړۍ یې د اروپایي تجاوزګرو مخه ډب کړې وه، له نړیوالو زبرځواکونو سره یې دمسلمانانو په نمایندګۍ سیالي کولای شوای او یو دپاموړ نړیوال ځواک ګڼل کیده، دعثماني ترکانو له شکست وروسته مسلمانان بیا هیڅکله په نړیوالو قضایاوو کې له یوه قوي دریځ سره راپورته نه شول، بلکې د کفري زبرځواکونو دخپل منځي سیالیو ښکار ته ولویدل.

که په اسلامي نړۍ د لومړۍ نړیوالې جګړې اغیزې په لنډو راخلاصه کوو نو داسې ویلای شو، له دې جګړې سره بیت المقدس یوځل بیا د صلیبي انګلیسي ځواکونو لاس ته ولوید او هغوی ورته دنړۍ له ګوټ ګوټ څخه د یهودانو راوستل پیل کړل، متحد عرب وطن د سایس – پیکو تړون په رڼا کې په څو برخوویشل شو، د کویت، عراق، اردن، فلسطین، حجاز، لبنان او سوریې په نومونو نوي واړه حکومتونه رامنځته شول چې دفرانسې او انګلیس مستعمرات وو، په عربو کې د ملت پالنې او پان عربیزم روحیه راژوندۍ شو، چې په نتیجه کې یې د ترکانو او عربو ترمنځ قومي دښمني پیل شوه، اتاترک چې عرب او اسلام یې یو شی بلل

دعربو سره د رقابت له امله يې له اسلام سره هم دښمني پيل کړه، بې دينه حکومت يې رامنځته کړ په عربي رسم الخط او ګڼو اسلامي احکامو يې بنديز ولګاوو او اذان يې له عربي څخه په ترکي واړاوو.

د دې جګړې په نتيجه کې په ايران باندې د روسيې او انګليس استعماري پنجې نورې هم مضبوطې شوې، د قفقاز او بالکان په سيمو کې دعثماني امپراطورۍ مسلمان ميشتې سيمې د متحدينو لاسته ولويدې او نوې واړه جمهورتونه په کې رامنځته شول، دې جګړې مسلمانانو ته ځاني زيان هم درلود، عثماني ترکانو چې هيله يې درلوده په دې جګړې سره به دنړۍ مستعمره مسلمانان دانګليس په وړاندې وجنګوي بالمقابل انګليسان او فرانسويان وتوانيدل د هند، پنجاب، او افريقايي اسلامي هيوادونو په لکونو مسلمانان د دا روپا او منځني ختيځ په جبهو کې د عثماني خلافت په ضد وجنګوي.

په اسلامي نړۍ د دې جګړې يو مثبت اغيز دا وو چې په اسلامي امت کې يې دانګليس او نورو اروپايي استعمارګرو په خلاف د کرکې روحيه زياته کړه، په افغانستان کې دانګليسانو په خلاف عمومي نفرت اوج ته ورسيد، تردې چې په ۱۹۱۹ م کال کې انګليس پلوی مشر امير حبيب الله دافغانانو لخوا ووژل شو، افغانانو په داسې حال کې چې هيواد يې له شرق، غرب او جنوب څخه انګريزانو محاصره کړی و، بشپړه خپلواکي اعلان کړه او په دې مبارزه کې کامياب شول.

د لومړي نړيوال جنګ له امله په لومړي ځل په هند کې دانګريزانو په خلاف په لويه کچه مخالفتونه راوپاريدل، مسلمانو مشرانو دعثماني خلافت په پلوی د جهاد فتوا ورکړه، په هند کې د خلافت پارټۍ جوړه شوه، هند دارحرب او افغانستان داراسلام اعلان شواو مسلمانانو له هند څخه ډله ايز هجرت پيل کړ، په دې لړ کې يوازې د ۱۹۲۰ م کال په اګست کې ۱۸ زره هندي مسلمانانو دافغانستان په خوا هجرت وکړ.

د دې جګړې له امله په افريقايي اسلامي هيوادونو کې هم دانګليس، فرانسې او ايټاليا په خلاف مخالفتونو زور واخيست، او اولسي قيامونه پيل شول، چې وروسته بيا همدا قيامونه د دې هيوادونو دخپلواکۍ ګټلو مقدمات ثابت شول.

خو په ټوله کې ويلای شو چې لومړی نړيوال جنګ د مسلمانانو لپاره خورا بدې پايلې درلودې، له دې جګړې سره مسلمانان نور هم پارچه پارچه او کمزوري شول، عثماني خلافت چې ډيره موده د مسلمانانو يو نماينده زبرځواک و له منځه لاړ او بيا دادی د سلو کلونو له تيريدو سره مسلمانان کله هم په يو قوي محور راټول نه شول.

## اخځونه


- بيلابيلې انټرنيټي پاڼې
- طعم ناخوشايند استعمار – ليکوال سراج الدين اديب
- تاريخ اروپا / دريم جلد / ليکوال هربرت فيشر، ژباړه وحيد مازندراني
- مسلم تاريخ کی نازک اور فيصله کن موړ – ليکوال محمد اجمل
- دافغانستان پر معاصر تاريخ يوه لنډه کتنه – محمد ابراهيم عطايي

ز- م افغان

# د خلکو رایه

## او د جان کیري په لاس جوړ شوی حکومت

اوس به ټول خلک پوه شوي وي چې په افغانستان کې د خلکو اراده، رایه، ډیموکراسي او انتخابي حکومت څه معنی لري. د افغانستان دردېدلی ولس څو میاشتې د ټاکنو په نوم په یوه امریکایي پروسه کې را ګېر دی، چې ولس ته یې یوازې لوږه، نا امني او بې ثباتې ورکړې ده .

د امریکا سفارت کرایي افغان نماڅیرو او د ډیموکراسي مبلغینو او د غرب لاسپوڅو رسنیو پرله پسې خلکو ته تبلیغ کاوه چې را ووځي، رایه ورکړي، خپل ولسمشر وټاکي، خپل سرنوشت په خپله وټاکني او د بدلون لپاره هلې ځلې وکړي. اته میلیونه خو له شک پرته دروغ دي، خو ښایي له ٤ – ٥ میلیونو افغانان د دوی په دغو تبلیغاتو را ووتل، خپلې ګوتې یې شنې کړې او د څو کاندیدانو له منځه یې یوه ته رایه ورکړه.

ډېر وخت نه دی وتلی، له خلکو د ټاکنو په اړه شوي تبلیغات هېر نه دي، خو اوس خپله ویني چې د دوی اراده او رایه کوم ارزښت لري او که نه. د دوی برخلیک ربښتیا هم دوی ټاکي او که بل څوک.

اوس دا له هېچا پټه نه ده چې د خلکو رایې او اراده بې ارزښته وه، دکابل راتلونکي حکومت افغانانو نه، بلکې جان کیري ټاکلی او جوړ کړی دی. له همدې امله د میلیونونو افغانان اراده د جان کیري د ارادې په اندازه ارزښت نه لري. ځکه چې موږ د خپلو ارزښتونو سره سم عمل نه و، کړی او په یوه امریکایي پروسه کې ور ګډ شوي وو، نو ځکه یې پایله زموږ نه، د امریکا په ګټه ده.

د جان کیري پر مټ جوړېدونکی حکومت به لومړی تر هر څه وړاندې د ډلو او ټپلو یو سلاټه حکومت وي او ددې پر ځای چې ولس او خلکو ته کار وکړي، ټول وخت به یې پر خپل منځي اختلافاتو او ناوړه سیالیو تیریږي او هر ډله به هڅه کوي چې د خپلو شخصي او ګوندي ګټو لپاره کار وکړي او دوی ته به دا مهمه نه وي چې ولس څه غواړي او څه ته اړتیا لري. ددې ترڅنګ دغه د جان کیري په لاس جوړ شوی حکومت به په شدت سره د امریکایي ګټو د خوندي کولو لپاره کار کوي او هڅه به کوي چې په واک کې د پاتې کېدو لپاره جان کیري او په ټوله کې امریکایي دولت خوښ او راضي وساتي. نو راتلونکی حکومت به د ولس او خلکو پر وړاندې هر ډول ظلم او زیاتی کوي او د امریکایي ګټو د خوندي کولو لپاره به ټول بریدونه ماتوي.

اوس نو باید ولس پوه شوی وي، چې په غربي ډیموکراتیکو پروسو کې ور ګډېدل څه پایله لري او له دې لارې نه شي کیدلی چې د خلکو په ژوند کې مثبت بدلون راوستلی شي. غربي ډیموکراتیکې پروسې یوازې د غرب د ګټو د خوندي کولو لپاره دي او له دې پرته اسلامي امت ته هېڅ هم نه شي ورکولی. همدا وروستی ټاکنه یې غوره بېلګه ده، چې امریکا په کې خپلې ګټې تر لاسه کړې، خو افغانان په کې د اوږده وخت لپاره د سیاسي، اقتصادي او امنیتي اور په تنور کې وغورځېدل.

د افغانانو په شان د تاریخي، مسلمان، مجاهد او غیور ولس لپاره د جان کیري په لاس جوړ شوی حکومت په هېڅ ډول د منلو وړ نه دی او دا ولس هېڅکله د خپلو ارزښتونو او عقیدې خلاف نظام ته وخت نه ورکوي چې د امریکایي ګټو لپاره پر دوی نور وحشتونه هم وکړي. اوس هغه وخت دی چې نه یوازې امریکایي استعمار، بلکې د هغوی لاسپوڅو نظامونو او غربي ارزښتونو ته هم ((نه)) وویل شي.

# څو ورځې په میدان ښار کې

محمد شریف راشد

د ۱۴۳۵ هـ ق د روژې نونسمه ورځ وه چې میدان ښار ته ورسېدم ، د میدان ښار ښکلا ، د خلکو خوښې ، د مجاهدینو برلاسي ، او د غازیانو ډلې ډلې وجود هغه څه وو چې تسل خوښي او ډاډ یې را وبخښلو .

د اختر تر لسمې هلته وم ، پدې شلو ورځو کې چې ما څه ولیدل او اورېدل او حس کړل د هغې غونچه تاسو قدرمنو ته ډالۍ کوم.

**زمونږه سیمه :**

د میدان ښار په بازار کې درې لارې دي ، دوه یې کابل او کندهار ته تللي ، دریمه لار چې د شمال غرب خواته ترې جدا شوې بامیانو ته قافلې پرې ځي ، همدا د بامیانو سړک په یوه اوږده دره کې وړاندې تللی ، دواړو خواوو ته یې له تېرو پرښو جوړ د هندوکوش د دنګو غرونو شنه او توره لړۍ په مستطیل شکل پرته ، او د وړو وړو درو خولې ورته را خلاصې دي.

د درې د ځمکې مخ د منو ، چنار ، سنزلو ، زردلو ، توتو او نورو شنو ونو پرونې پټ کړې دی ، ټوله دره لکه د پانې په څېر په منځ کې لوی سیند او سړک لري ، او له شاوخوا درو څخه همدې سیند او سړک ته واړه واړه سړکونه او سیندونه را توییږي.

زمونږه سیمه هم د شمال لور ته په وړو کې ستره دره ده ، د کوټه عشرو د زاړه بازار له شا څخه پیل کېږي ، په پیل کې پراخه ، وړاندې بیا په په دوه درې وړو وړو برخـــو وېشـــل شـــوې او د هندوکوش په لویه لړۍ یې ابادي ختمېږي ، په سر درو کې یې د کوچیانو کېږدۍ او خواره کلي ستړي مسافر ته تسل او هیلې جوړوي ، اول کلي یې روستم خیل او جندي خیل نومېږي ، وروستنۍ برخه یې ګهنه څمار بلل کېږي.

**جهادي وضعه :**

د میدان ښار د نورو سیمو په نسبت دا ټوله دره د مجاهدینو لپاره ښه قرارګاه ده ، درې خوا ووته یې غرونه دي ، یوا ځې یوه لاره لري چې دښمنان پرې پل ایښودو ته زړه نه ښه کوي.

له همدې امله په سیمه کې مجاهدین په پوره معنا حاکم دي ، ډېر مجاهدین لري ، او خلک یې هرکلی کوي.

**اقتصادي حالت :**

د ټول میدان ښار د خلکو اقتصادي حالت ښه دی ،ډېر خلک په تجارت بوخت دي ، د پیوسته کابل له امله پاتې خلک هم د کابل په ښار کې په دوکانداریو او نورو تجارتي چارو کې مصروف وي.

پدې غریبیزه درو کې ځمکې کمې دي ، چې ډېرې یې اوس په باغونو پوښل شوي ، له همدې امله خلک تجارت ته اړ دي ، خو بیا هم د کور په سر یو سړی د باغونو څارنې او ساتنې ته ګومارلی وي ، د منو او زردلو حاصل د ډېرو کورنیو د اقتصاد یوه برخه جوړوي.

هغلته د ښه اقتصاد یوه ګټه دا شوه چې د پیسو له لارې یرغلګر د خلکو د زړونو په را نیولو کې پاتې راغلل ، د اربکیتوب شومه پروسه دلته ناکامه شوه ، او د جاسوسانو شتون هم صفر دی.

دا ، او د جهاد مینه خو د ایمان برخه ، د وطن حق ، او د مشرانو میراث دی ، نو ځکه د جهاد صفونه له تنکیو زلمیانو او لویانو څخه ډک وي.

**له مجاهدینو سره مینه :**

د وطن د نورو سیمو په څېر هلته هم مجاهدینو ته خلکو په احترام درلود ، په مینه یې لاربښونه ، مرسته او درې وخته ډوډۍ ورکوله ، دا خو یې د هر ګروپ حق ګڼلو ، خو د روستم خیلو او کهنه خمار د سیمې د مجاهدینو یوه مشر... یوه خبره راته وکړه چې زه یې په سر کې حیران او بیا په خپل ولس ډاډه کړم ، هغه ویل چې: له پسرلي را هیسې چې په سیمه کې مونږه عملیات پیل کړي دي تر اوسه پورې هره ورځ زمونږه ګروپ ته په یو کور کې خامخا د چا له لوري مېلمستیا وي ، او ډېرې ورځې داسې شوي چې دوه کورونو مېلمستیا کړې وي ، بیا مو د هغوی د خوښولو لپاره ملګري په دوه ډلو وېشلي او دواړه کورنۍ مو رضا کړي دي.

دا خو ما په خپله ولیدل چې مجاهدین به په کوم کور یا کلي تېرېدل ، نو لویانو او وړو ماشومانو به د زړه له کومې د چای ډوډۍ کلک ست کولو.

یو وارې مونږه د کهنه خمار په کلي کې چې د تاجکو سیمه ده روان وو ، له یوه کاریز څخه تېرېدلو ، هلته څو ماشومانو د اوبو شاوخوا ته لوبې کولې ، پام یې نه وو مونږ ترې تېر شولو ، چې له شا یې غږ را وکړ ، زه ورته ودرېدلم ما ویل که څه کار به یې وي ، چې را غلل د پنځو شپږو کلونو واړه واړه ماشومان وو ، لکه د لویانو په څېر کلک شولو ، خپل کور ته یې اشاره کوله او په لوړ او ډاډه غږ یې ویل: بي آیید ، چای بخورید ، چاشت همرای ما باشید...

**د ګوډاګیانو حالت :**

د امریکایانو وروستی ښېس د میدان ښار د بازار له څنګه په وتو وو ، کانټینرونه زاړه ټانکونه یې لیلام کړي وو ، ډېر زاړه ټانکونه ورڅخه د ډېګ بخار د یوې کارخانې مالک اخستي وو ، چې وسپنه یې د دې دېګیو لپاره ډېره مناسبه وه ، یو کس راته اوویل چې د کارخانې مشر ډېر خوشحاله وو ، چې له دې وسپنو څخه به ولس ته ښه دېګونه تیار کړم.

بامیانو ته په غزېدلي سړک ځای ځای د هزارجات د اربکیانو پوستي او دوه درې ځایه د غلامې اردو ښېسونه دي ، خو د دوی شتون تر پاخه سړکه پورې محدود دی ، ځکه چې لاندې ځمکه له سړک نه پرته ټوله باغ او ځنګل دی ، چې د دوی واک د سړک له ژۍ سره پرې ختمېږي.

دا پوستې وخت په وخت د مجاهدینو تر بریدونو لاندې وې.

د جلرېز ولسوالۍ د زیولایت د سیمې د سړک پوستې خو د درازکوپ له وېرې داسې وې چې پېره پرېښودلو ته اړ شوي وو ، چې سر به یې اوچت کړو نو په لاندې باغونو کې ناستو مجاهدینو په د درازکوپ په غلي او وېرژن ګوزار ویشتل چې تر عمره به له سر پورته کولو پاتې شول.

د جلرېز د زیولایت د سیمې دوه زلمي مجاهدین د اربکیانو په ښکار کې ډېر مشهوره شوي وو ، په یه باندې یې چا ټوکه کړې وه چې: ته خو درازکوپ په اوږه په اربکیانو پسې داسې ګرځې لکه ایلۍ چې ولې.

**د مجاهدینو شتون :**

په مرکز او جلرېز ولسوالۍ کې بامیانو ته د غزېدلي سړک د مستقیم خط له هغو سیمو نه پرته چې پوسته یا ښېس وو پکې وو ، نورې ټولې سیمې د مجاهدینو تر تصرف لاندې وې ، د جنوب خوا ته له غره نه آخوا د نرخ ولسوالۍ ده ، هلته اوس د اسلامي امارت د مجاهدینو پوره واک وو ، د نرخ په اول سر کې په ولسوالۍ له را څرخېدلیو څو پوستو پرته نوره ټوله سیمه د اربکیانو له وجود څخه پاکه او خلک ښېرته ډاډمن ژوند ته ستانه شوي وو.

د مجاهدینو د خپل منځ اتفاق او همکارۍ ډېره د ډاډ وړ وه ، د سیمې ټول مجاهدین سره یو غږ او د ضرورت په وخت کې یو بل سره ملاتړي وو ، له اختر نه دوه درې ورځې مخکې مجاهدینو د امریکایانو په ښېس د میزایلو حمله وکړه ، میزایل

ډېر په هدف لګېدلي وو ، په غزا کې یو مجاهد ولایت ته نږدې کوم ځای ته روان وو ، دغلته د روسانو د وخت د کومې جهادي ډلې په نوم یو سري مرموز جهادي حرکات لري ، هغوی دا مجاهد نیولی وو ، خو دې مجاهد په اول سر کې ملګري خبر کړي وو ، دې مرموز ګروپ د ولایت ځینې اورګانونه خبر کړي وو ، چې دا مجاهد به په لاس ورکوي ، خو چې نور مجاهدین پرې خبر شول نو ټولو ګروپونو هغه سیمه کلابندده کړه او هغه مجاهد یې سالم ترلاسه کړ.

## په سیمه کې د خدای نښې :

یوه ډېره جالبه معنا ما هغلته ولیدله چې: د روان جهاد په حقانیت او د سیمې د مجاهدینو په خلوص یې دلالت کولو ، هغه داوه چې: ډېر عامو خلکو او ډېرو مجاهدینو رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوب کې لیدلی وو.

د کهنه خمار د قلعه بَغَل کلي یوه ځوان چې سجاع (شجاع الدین) نومېدو ویل چې: د روژې په دیارلسمه شپه مې په خوب کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدلو ، سپینه پګړۍ او سپین کالي یې په ځان کې وو ، مخته یې شهیدان شوي مجاهدین ګرځېدل ، ما ته یې ویل چې: د کُهنه خُمار د قریې مولوي صاحب ته او وایه چې خلکو ته اعلان کړي چې: د شهیدانو په هکله تشویش مه کوئ ، هغوی ټول داده له ما سره دي.

سجاع ویل: ما هغلته ډېر شهیدان شوي مجاهدین ولیدل ، شهید قاري هدایت او "نور سید" مې ولیدلو ، هماغسې جمپرونه او کرمچ یې په پښو وو.

سجاع د خپل ماشوم زوی بشیر په هکله ویل: دا عجیبه ماشوم دی ، له مجاهدینو سره دومره مینه لري چې زه یې مجبوره کړم چې له دې ځای نه یې په سوونو کلومتره لرې د یوه شهید د یتیمانو لیدلو ته ورولم.

خو واړې د ده په مخ باندې الله اکبر ولیکل شو ، او اکثره د اسلامي میاشتې په ۱۳ ، ۱۴ ، او ۱۵ تاریخ د ده په ژبه د خدای سل نومونه واړه واړه لیکل کېږي.

د واړه اختر په دریمه ورځ: یوه مشر حاجي صاحب چې کور یې د مجاهدینو ډېر خدمت کړی دی ویل چې: بېګا شپه مې چې مجاهد زوی له کوره وتلو نو ډېر خفه شوم ، او په کور کې هم لږ خفګان وو ، هغې نور هم وزورولم ، همدا سې ویده شوم ، د شپې مې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوب کې ولیدلو ، د مکې په ښار کې له یو ځای څخه را اووتلو ، نور اصحاب هم ورسره وو ، په اس سپور وو ، زغره یې اغوستې او خول یې په سر ، لوڅه توره یې په لاس کې اوچته نیولې وه ، ما ډېره ښېبه ورته وکتل.

حاجي صاحب ویل چې د شپې ډېر خفه وم ، خو اوس له خوښۍ نه په جامو کې نه ځایېږم ، ویل یې چې: کاشکې لږ ډېر غمجن شوی وی چې تر دې مې ښه خوب لیدلی وی ، یعني خدای پاک مې په خوب لیدلی وی.

د روژې په دوه ویشتمه ورځ قاري زین الله او ورسره د زبیر په نوم دوه مجاهدین په ډرون حمله کې شهیدان شول ، زین الله ډېر لوی اتل او غازي وو ، ډېر امریکایانو او ګوډاګیان د ده په لاس وژل شوي وو ، پدې ورځ هم په سړک د ګوډاګیانو ډله راغلې وه ، د راشکو لوړې غونډې ته ختلو چې له پاسه سړک تعقیب او خبر شوی ماین په مناسب وخت کې د ریموټ په واسطه انفجار کړي ، دې پر لاره وو ، چې شهید شو ، یو ورور یې قاري سیف الله څو کاله مخکې شهید شوی دی.

د کاکازوی یې خالد ویل چې: د قاري زین الله مور بې بې ویل چې: د ده له شهادت نه څو ورځې مخکې ما خوب ولیدلو ، سیف الله او زین الله دواړه ورونه یو ځای کې ولاړ وو ، زه پرې تېرېدم ، ما ور څخه وپوښتل: دلته ولې ولاړ یاست؟ هغوی ویل چې: د خدای پاک ملاقات ته ولاړ یو.

د یو مجاهد په کور کې پلار مور او مشرې خور رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوب لیدلی وو ، همدا سې نور هم ډېر زیات خلکو او مجاهدینو لیدلی وو ، اوس همدومره ، ان شاء الله دا او د نورو سیمو د مجاهدینو خوبونه به په یو ځانګړې مقاله کې را ونغاړو.




# دحج فضائل او احکام

حج د اسلام له ارکانو څخه هغه ستر رکن دی چې په دې عبادت کې ډیر حکمتونه او عبرتناک درسونو نغښتي دي ، حج په هر کال کې په نړیواله سطحه د مسلمانانو لویه اجتماع ده چې یو له بله خپل نظریات ، سیاست ، اقتصاد ، کلتور او د مشکلاتو حل ، په نړیواله سطحه اسلامي وحدت ،علوم او تجربې په داسې حال کې یو له بله شریکوي چې د الله تعالی د رحمت تر سیورې لاندې خاص د الله تعالی د رضا لپاره په یو مقدس ځای او مقدسو ورځو کې سره ټول شوی وي.

حج د اسلام د شعائرو یو نمونه ده چې د خاصو مناسکو ، خاصو ورځو او خاصو ځایونو او احکامو سره ادا کیږي ، هماغه شعائر چې تعظیم او احترام یې د زړه تقوی او د خیر سبب دی لکه چې الله سبحانه وتعالی فرمایي : وَمَن يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللَّهِ فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى الْقُلُوبِ (**الحج ۳۲**)

د حج ځنې حکمتونه او د عبرت درسونه په لاندې ډول دي :

۱- حج د الله تعالی د بنده ګۍ او فرمانبرداری ښکارندوی دی ځکه چې حاجي د دنیا د آرام ټول اسباب ترک کوي ، اهل عیال پرېږدي ، د دنیا د ټولو مشغولتونو څخه خپل زړه او فکر خالي کوي ، د حرمین شریفین په لورې سفر کوي ، خپلې قیمتي جامې باسي د کفن په څیر دوې سپینې جامې اغوندې د الله تعالی په یاد کې د الله تعالی د داسې بیتې طواف کوي چې الله تعالی یې د طواف حکم کړی دی ، هغه مقدسه کعبه شریفه چې لومړې د ملائکو په لاسونو بیا د آدام علیه السلام، ابراهیم علیه السلام، اسماعیل علیه السلام او جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاسونو جوړه شوې ده ، په مسجد الحرام کې په داسې حال کې د الله تعالی په حضور کې لمونځ کوي چې کعبې یې مخې ته قرار لري او میلیونونه مسلمانان حضور لري ، دا هغه جومات دی چې په دې جومات کې یو لمونځ د یولکو لمونځونو برابر ثواب لري .



بیلابیلې دیني منابع

۲- د عرفات په صحرا کې د مسلمانانو لویه اجتماع د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم د حجة الوداع د آخري حج یاد دی چې په دغه صحرا کې رسول الله صلی الله علیه وسلم پخپله اوښه سپور ؤ او د هغه چاپیر یو لک څلویښت زره عاشقان صحابه جمع شوی وو او رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل امت لپاره مهم امور اعلانول او د خپل امت د بخښنې او اصلاح لپاره یې په ډیره عاجزۍ سره دعا کوله.

داد ژړا او زاریو، بخښنې او دعا ځای دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: په دې ورځ شیطان تر بلې هرې ورځې نه زیات ذلت او خواريویني ځکه چې د بندګانو ګناهونه معاف کیږي (موطا امام مالک).

همدارنګه مسلم شریف د عایشې رضی الله عنها په روایت سره نقل کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: داسې ورځ نشته چې په هغې کې الله تعالی د عرفې د ورځې نه زیات د خپلو بندګانو د دوزخ د اور څخه د نجات فیصله وکړي- په دغه ورځ الله تعالی د خپلو بندګانو باندې د رحمت نزول کوي، او په دوی باندې فخر کوي فریښتو ته وایي: [ما اراد هؤلاء] یعنې: تاسې وینئ زما دا بندګان دلته د څه مقصد د پاره راغلی دی؟ (المسلم)

په دې صحرا کې د میلیونو مسلمانانو ټولیدل په داسې حال کې چې د کفن په څېر جامه اغوستې سر تور سر د حشر د ورځې یو یاد دی.

۳- د صفا او مروه تر مینځ سعې د بی بی هاجرې رضی الله عنها د لوی استقامت، صبر او قربانۍ یاد دی.

کله چې ابراهیم علیه السلام د الله تعالی په حکم خپله بې بې هاجره رضی الله عنها سره د خپل تي خوري بچي اسماعیل علیه السلام د مکې په وچه دښته کې چې نه هلته آبادي وه او نه هم اوبه پریښودل او ابراهیم علیه السلام د شام په لورې روان شو او کله یې چې د اهل څخه نظر فنا شو نو د الله تعالی په دربار کې داسې دعا وکړه:

رَبَّنَا إِنِّي أَسْكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِي بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ عِندَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ (حج ۳۸).

ژباړه: ای زما ربه! ما خپل اهل عیال په یوه بې کښته او بې ابو دښته کې ستا د محترم کور تر څنګ میشت کړل.

د بې بې هاجرې سره څه خرما او اوبه موجود وو کله چې هغه اوبه خلاصې شوې اسماعیل علیه السلام له تندې سره مخ شو بې بې هاجرې د ابو په لټه کې د صفا او مروا دوو غونډیو تر مینځ اوه ځله منډې ووهلې کله چې د خپل بچي خوا ته راغله ګورئ چې د هغه په پښو کې ابه روانې دي بې بې هاجرې اوبه ته وویل زم زم (ودریږئ) چې دا د ابو چینه اوس د زم زم په نوم یادیږي.

او د صفا او مروا تر مینځ د حاجیانو سعې کول د بې بې هاجرې د سعې یادګار دی چې د قیامت تر ورځې به ژوندی وي، الله (جل جلاله) ته د بې بې هاجرې صبر، استقامت او د الله تعالی د حکم منل دومره خوښ شول چې د دغه بې بې منډې او سعې یې د قیامت تر ورځې پورې د عالم د پاره یو یادګار او عبرت وګرځولو او حاجیانو ته حکم شوې دی چې د دغه بې بې د منډو پر ځای به منډې وهي کوم چې د صفا او مروه تر مینځ سعې دي.

۴- په منا کې د حاجیانو وقوف او د جمرو ویشل د شیطان پر وړاندې د بت ماتوونکي ابراهیم علیه السلام د سترې مبارزې او سترې قربانۍ یاد دی.

په ابراهیم علیه السلام باندې د الله تعالی د دې ابتلاء وروسته چې خپله بې بې او ماشوم د مکې په وچه دښته کې پریږده ابراهیم علیه السلام د الله تعالی په حکم خپله بې بې او ماشوم بچی د مکې په وچه صحرا کې پریښودل او په دې ابتلاء کې کامیاب شو، د دې نه وروسته پر ابراهیم علیه السلام باندې بله ابتلاء راځي چې خپل هغه ماشوم زوی دې ذبحه کړه چې نوې تنکۍ ځوانۍ او د مور سره د منډو تړړو سن ته رسیدلی دی، الله سبحانه وتعالی فرمایي:

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ يَا بُنَيَّ إِنِّي أَرَى فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ فَانظُرْ مَاذَا تَرَى قَالَ يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ سَتَجِدُنِي إِن شَاءَ اللَّهُ مِنَ الصَّابِرِينَ (**الصافات ۱۰۲**).

ژباړه: هغه هلک چه کله د هغه سره د منډو ترړو سن ته ورسید، نو ابراهیم علیه سلام هغه ته وویل زویه! زه په خوب کی وینم چه ستا ذبح کوم، اوس ته ووایه چه ستا څه نظر دی، هغه وویل پلار جانه! دهغه څه چه ستاته حکم کیږی ترسره کړه ته به ان شآء الله ماله صابرانو څخه ومومی.

ابراهیم علیه السلام د الله جل جلاله د حکم له مخې خپل ماشوم زوی د ذبحې کولو لپاره د ځان سره روان کړ، رټل شوي شیطان کوښښ کولو چې اسماعیل علیه سلام او د هغه مور پښیمانه کړي خو شیطان په دې ونه توانیده دوی دواړه د الله (جل جلاله) د حکم پر ځای کولو په لوري صحرا ته روان شول او شیطان يې ورټلو چې اوس په همغه ځای باندې ځلی جوړ دي او حجاج يې جمرې کوي.

دا د شیطان پر وړاندې د ابراهیم علیه السلام، بي بي هاجرې او اسماعیل علیه السلام د مبارزې لوی عبرتناک درس دی چې دقیامت تر ورځې به يې یادګار ژوندی وي.

۵- په حج کې دا پر ډاګه څرګندیږي چې مسلمانان د یو جسد حیثیت لري په میلیونو کسان د اسلامي شریعت د حکم پر آساس یو شان مناسک ادا کوي او د یو امام په اقتدا لمونځ کوي چې د تور، سپین، مالدار او غریب، قوي او ضعیف، اقتدار واله او بې اقتداره تر مینځ هیڅ فرق نشته او ټول یو شان جامې اغوستې وي او یو شان مناسک ادا کوي.

د حج ادا کول د کفر او شرک پر وړاندې د ابراهیم علیه السلام او رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه د صحابه د مبارزې یادګار دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو د دین په رسولو کې څومره تکلیفونه ګاللي دي او د دوی د تکلیف ګاللو په وجه دغه د اسلام ستر نعمت تر مونږ پورې رارسیدلې دی، هلته مسلمان له خپل پروردګار سره تعهد کوي چې نور به د شیطان پیروي نه کوم، د شیطان او اسلام دوښمنو پر وړاندې به جهاد او مبارزه کوم او د دین د نصرت د پاره به د خپل وس موافق هلې ځلې کوم.

۶- د حج د ادا کولو وروسته حجاج کرام د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم دارالهجرت مدینې منورې ته سفر کوي، په دې مبارک ښار کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو مبارکانو قبرونه دي او د رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو په لاسونو باندې جوړ شوی نبوي جومات دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په اړه فرمايي: صلاة في مسجدي هذا أفضل من ألف صلاة فيما سواه إلا المسجد الحرام). الطبراني و صحيح ابن حبان).

یعنې زما په جومات (مسجد نبوی کې) لمونځ کول د نورو تمامو جماعتونو د زرو لمونځونه بهتره دی (سواد مسجد الحرام) نه

## دحـــج احکـــام

حج په عمر کې یو ځل فرض دی، ددې رکن منکر کافر دی او د فرض کیدو د شرایطو برابر کیدو باوجود نه اداکول واله فاسق او ګنهګار دی، لکن حج په هر مسلمان فرض نه وي بلکه پر هغه چا فرض دی چې توان يې ولري.

**قوله تعالی**: وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً ((**آل عمران ۹۷**)

ژباړه: او حج د دغه الهي خونې پر هغو خلکو فرض دی چې (مالي او بدني) توانايي ولري.

د مالي او بدني توانایی شرح په لاندې ډول ده

۱- په نابالغ او لیوني باندې حج فرض نه دی اګر که مالي توان هم ولري.

۲- تندرست کیدل: یعنې چه بدن يې داسې ناروغ وي چې د سفر کولو توان نه لري.

۳- دلارې خرچ ولري او همدارنګه د خپل اهل عيال د کومو چې نفقه د ده په ذمه وي د بير ته راتګ تر وخت پورې د هغوی د پاره خرچ ولري .

۴- پوروړی او قرضدار نه وي ، که د قرض د ادا وروسته دومره مالي توان ولري چې د کور د اهل او لارې خرچ ورباندې کيږي نو حج ورباندې فرض دی
.

۵- دلارې امنيت

۶- د چا ضامن نه وي : که ده د چا ضمانت کړی وي نو بيا د ضمانت په دور کې حج کول صحي نه دي .

۷- د حج وخت : د حج په مقرر موده کې حج ادا کول د هغې مقررې مودې نه وړاندې يا وروسته حج کول نه ادا کيږي

۸- د ظالم حکومت لخوا څه منع نه وي او يا په جيل او زندان کې نه وي (آزاد) وي .

د ښځو حکم : د ښځو د پاره ددې شرطونو سره دوه شرطونه نور هم دي

اول: هغه به يوازې نه ځي بلکې خاوند او محرم به ورسره وي .

دوهم : دوهم شرط دا دی چې هغه به په عدت کې نه وي ، عدت که د خاوند د مرګ وي او که د طلاقو وي

## د حج فضايل

له حضرت ابی هريرة رض څخه روايت دی هغه وايي چې ما له رسول الله ص څخه واوريدل چې فرمايل ئې :

څوک چې د الله ج لپاره حج وکړي د شهوت او ګناه خبری ونه کړی دی به داسې پاک راوګرځي لکه په کومه ورځ چې دی مور زيږولی وي (مسلم ، بخاري ، ترميذی)

همدارنګه له حضرت ابی هريرة رض څخه روايت دی چې رسول الله ص وفرمايل :

يوه عمره تر بلې عمرې د هغه ګناهونو کفاره ده چې د دوی تر منځ وي او د قبول شوي حج بدله پر ته له جنت څخه بل شی ندي (د مبرور معنی هغه چې ګناه پکې نه وي ،قبول شوی وي ،هغه چې ريا پکې نه وي يا هغه چې ورسته ور څخه ګناه ونشي ) .



له عائشی رض نه روايت دی چې له رسول ص څخه موپوښتنه وکړه آيا په ښځو جهاد شته ؟

رسول الله وويل هو : په ښځو داسې جهاد دی چې په هغه کې قتال نشته هغه حج او عمره ده . (ابن ماجه)

له حضرت ابی هريرة رض څخه روايت دی چې يقيناً رسول الله ص وفرمايل :

حاجيان او عمره کوونکی د الله ميلمانه دی که هغوی خدای ج ته دُعا وکړی هغه قبليوي (ځکه چې د مومين نيک خواهش ضرور پوره کيږي ) او که هغوی د خدای ج څخه عفوه وغواړی هغه بخښل کيږي .

. الله تعالی دې مونږ ته ددې پوره توفيق راکړئ چې په اخلاص سره د حج د اداکولو د پاره حرمين شرفين ته سفر وکړو (بيلابيلي ، ديني منابع )

# په څرخ کې څه تېرېږي؛ خوله رسنيو پټ

وحيدالله لوګرى

څرخ د لوګر له تاريخي او غرنيو ولسواليو څخه يوه، چې مولانا يعقوب څرخي او وتلي صوفي شاعر بهاوالدين آغا پکې زېږه سپينه کړې، ددې سيمې جوړښت تر ډېره غرنی او غرونو، د انګورو او ګڼو ميووو باغونو يې ښه بل ډول کړې او د طبيعت په يوه ښکلې منظره يې بدله کړې، د لوګر په ټول تاريخ کې څرخ تل د ديني علماوو، مدارسو او وتلو ديني څېرو ټاټوبی پاتې شوی دی چې د جهاد په وخت د څرخ مولوي صيب په ټول افغانستان کې شونې ده ډېر کم خلک ونه پېژني، نور خو يې ټولو ته هره کارنامه او سربښندنه ښه معلومه ده.

خو نن سبا د څرخ، طبيعي ښکلا او سکون هرڅه ترې هره ورځ نښتو، بمباريو، عملياتو او شپنيو عملياتو اخيستې، په تېرو دوو کلونو کې څرخ د سختې ناامنۍ، وژنو او بمباريو ښکار شوی دی، عمده لامل يې ددې سيمې تاريخي شاليد دی او شونې ده وطن دښمنه څېرې د هيوادله ډېروتاريخي سيمو تېر تاريخ ته په کتو سره ويره ولري.

څرخ وروسته تر هغه تر ډېره د بهرنيانو له لوري په نښه شو چې د دوی په لوګر کې يوازنی ستر پوځي مرکز شنګ د څرخ تر خولې پورې ورسيد او ډېرې عيني ځمکې او دښتې يې هم پکې په وچ زور لاندې کړې، خو د څرخ وضعيت وروسته تر هغه ډېر خراب شو، چې په دې ولسوالۍ کې د اربکي په نوم لومړنی قراردادي ډلې چې د شمالي ولايتونو وې مقررې شوې او دوی د ولس په ځورونه پيل وکړ، خو بالاخره وسله وال مقاومت ددې لامل شو څو له څرخ څخه ددې خپل سرو ډلو ټغرورټول کړي.

خو له تېر کال راهيسې نېږدې هره شپه ددې ولسوالۍ په ډېرو سيمو کې بيا د امريکايي ځانګړو ځواکونو وحشتونه روان دي او هره ورځ له ملکي وګړو په ډېره بې رحمۍ ژوند اخلي، او همدا کار ددې لامل شوی دی څو ولسي تنفر نور هم ډېر شي او خلک يو ډول له هرڅه بېزاره شي، تېر کال ددې ولايت ډېرې ښوونه او کروندې همداسې په پټيو کې پاتې شوې او بزګر ترې ګټه وانه خيسته، ځکه په هر بڼ کې به بزګر او کاريګر په الوتکو په نښه کېده.

سږکال بيا د افغانستان ځانګړو ځواکونو چې په دوی کې ډېری يې قومي عقدوي کسان او د شمالي ولايتونو دي دې شنې درې ته ورغلي دي او هره شپه ملکي وګړي وژني او د دوی کورونه پلټي بنديان کوي يې ځوروي يې او نيسي يې، خو دا لړۍ د سږني کال د هوا له ګرميدو سره سم ډېره چټکه شوې، زه منم طالبان په څرخ کې ډېر دي، تر نوروه لوګره شونې ده له ستراتيژيکه پلوه يې طالبانو ته ارزښت ډېر وي، لې دا په دې مانا نه ده چې افغان ځواکونه بايد تل ملکي وګړي په نښه کړي او يا ملکي وګړي ووژني.

تيره اونۍ زه په داسې يوه ناسته کې شاهد ووم چې له کابل پلاوی وروسته تر هغه ولاړ چې ځينو رسنيو په څرخ کې د ۴۰ ملکي وګړو د وژل کيدو اوټپي کيدو خبره وکړه، په

لومړي سر کې یادې خبرې تشې ډنډورې وبلل شوې، ځکه څرخ ته رسنۍ نه تلې او هرڅه به چې کېدل د والي د وياند د خولې خبره به سمه وه خو کله چې رسنۍ ورغلې او هرڅه روښانه شول نو شوی وحشت په هيڅ ډول د منلو وړ نه و.




د څرخ یو وتلي مشر او ديني عالم په هغه ناسته چې په مرکز پل علم کې جوړه شوې وه له کابله راغلي تش په نوم پلاوي ته وويل: « درې تنو زموږ په کور کې دوه تنه شهيدان کړل، لومړی کس يې را و ويست او سپيشل فورس يوه سرتيري بل ته وويل: رقص مرده را ديدي، په همدې خبره يې و ويشت، بيا يې ويل خوب رقص نکرد بل يې و ويشت او يوازې يو ماشوم يې په دې پلمه چې نورو اجازه ورنکړه پرېښود«.

يو بل تن په ياده ناسته کې وويل: « اربکيان ملکي وګړي برمته کړي، لاسونه وروتړي تر مخ يې کړي څو ځانونه له طالبانو خلاص کړي، کله کله دوی ملکي وګړي شهيدان کړي بيا دا پلمه کوي چې ګواکې ياد کسان طالبانو په نښه کړي دي او طالبان د ملکي وګړو له کورونو د سنګر په توګه کار اخلي.

په دې ولسوالۍ کې نن سبا د خلکو وژنې، ځورونې او د سپيشل فورس عملياتو يو وار بيا له خلکو سکون اخيستی دی، شونې ده يو وار بيا د دې ولسوالۍ خلک د تير کال په څير له هرڅه بې برخې شي او ميوې يې په بڼونو کې د کارغانو خوراک شي يا خرابې شي، د خلکو اقتصاد او وضعيت يې په همدې بڼونو پورې تړلی دی، په دې ولسوالۍ کې د ميوو په موسم کې دا ډول بې رحمه عمليات په هر حال ددې ښودنه کوي چې دلته ولس يو ډول مجبورېږي او اړ کيږي څو يا مړ شي يا مور، زه چې څومره خبر يم ويل کيږي چې دې ولسوالۍ ته د اربکي سازي طرحه پلان شوې وه ولس يې مخالفت وکړ او اوس اوس ولس په زوره اړ ويستل کيږي څو اربکي سازي وکړي او په دې سره به يوازې دولت د بيرغ حاکميت هلته ورشي نور چې هرڅه کيږي په دوی کار نشته.

يو وار بيا خبرداری ورکوم، چې دا ولسوالۍ دولت له قصده دې ډول ناامنيو ته ور ټيل وهي او هر ملکي وګړی دوی په يو نه يو نوم په نښه کوي څو په دې ولسوالۍ کې د اربکي سازي پروژه پلې شي يا په قرارداديډول يو وار بيا د ټلوالې لنډغرو ته وسپارل شي

# دعدلي محكمو دقاضيانو دسيمينارونو راپور

دروان ۱۴۳۵ هـ ق د شوال المکرم دمیاشتې په (۱۴ ۱۶\۱۵\) مه نیټه دافغانستان داسلامي امارت درهبري شورا لخوا دټولوعدلي محاکمو (ابتدائیه ،مرافعه، اوتمیز) قضاة اومفتیین کرام دیوه علمي اوروزنیز دري ورځني سیمینار لپاره رابلل شوي وو ،چې دمربوطه ولایاتو د نږدې ټولو محاکموڅخه قضاة اومفتیانو ګډون کړی ؤ.

سیمینارونوکې دمحاکمو دقضاة اومفتیانوعلاوه دتمیز دعالي ریاست مشرانو ،دریاست غړو اودهیواد نامتو علماؤ اوشیوخوهم ګډون کړی ؤ.

سره له دې چې په عمومي لارو زیاتې امنیتي ستونزې وې ولي بیاهم دهیواد دډیرې ولایاتو د محاکموڅخه نږدې ټول قاضیان اومفتیان دسیمینارونو ټاکلي وخت او ځای ته راورسیدل.

دسیمینارونو امنیتي وضعه خورا ډاډه ، چاري یې ښې سنبال شوي اوډګډون کونکو اړتیاوي په پام کې نیول شوي وې.

سیمینارونه دقرآن کریم په تلاوت سره پیل شول ، له تلاوت څخه وروسته لمړی یوه یوه تن عالم

مقدماتي خبري وکړي ، اووروسته دعدلي محکمو اداري اوحقوقي اجراآتو اصولنامي چې دفرهنګي کمیسیون دتالیف اوترجمي څانګي په کتابي بڼه چاپ کړي وې په ګډون کونکو وویشلي اووروسته دتمیز دعالي ریاست یوه تن عالم دغه اصولنامي ګډون کونکوته ماده په ماده لوستلي چې داړتیاپه وخت به حاضرو شیوخواوعلماؤ تشریح ورکوله ،دسیمینارونولمړۍ ورځ ښه بوخته او له فوایدوډکه تیره شوه.

## دعدلي محاکمو اداري اوحقوقي اجراآتو اصولنامي

دعدلي محاکمو دقضاء دغه اصولنامي چې دافغانستان دستري محکمي دمسلکي علماؤ په زیارباندي ترتیب شوي وي له ۱۳۳۶ لمریزکال څخه نافذالعمل وي.

خوبیاخرنګه چې اسلامي امارت وغوښتل چې دهیواد په شرعي محکموکې دقضیو اوڅېړنو کیفیت اواړوندچاري په اصولي اوشرعي طریقه سره لاښې تنظیم شي دمذکوره اصولنامو دکتني په موخه یې ۱۴۳۳ قمري کال د ۱۰ میاشتي په دوهمه نیټه یولوی علمي اوڅېړنیز سیمینار ترتیب کړ په سیمینار کې دتمیزعالي مقام علمي کدرونو دولایاتو دمرافعه محاکمو قاضیانو اودهیواد په کچه یوشمیر وتلو علماء کرامو چې دټولو شمیر ۶۰ تنوته رسیده ګډون وکړ ، په نتیجه کې یې داضطراري

غوښتنو او حالاتو له کبله په نوموړیو اصولنامو کې یو لړ اصلاحات رامنځ ته کړل.

د ۱۴۳۴ هق کال دربیع الثاني دمیاشتې په ۲۷\۲۶\۲۵ دافغانستان داسلامي امارت رهبري شورى دځينو غړو ،دتميز عالي رياست علماؤ او يوشمير متخصصو علمي شخصيتونو په ګډ مجلس کې نوموړي اصولنامي دمسلسلو تودو بحثونو په ترڅ کې وځېړلي ، او بيا داسلامي امارت مرکزي دارالافتاء هم دغه اصولنامي ترنظرتيري او تائيد کړي ،وروسته دوتلو علماء کرامو متخصصو څېړو يوهيئت وټاکل شو ترڅو دنوموړو اصولنامو دمادو شرعي فقهي جزئيات او ماخذونه ولټوي او بيايې له خپلو مادو سره په لمن ليک کې ثبت کړي ، نوموړي هيئت خپله ورسپارله شوي دنده ددرومياشتو په موده کې په ډېر دقت او غور سره سرته ورسوله.

درجب المرجب په ۱۲۶\۱۴۳۵ هق دهيواد دسترو علماؤ او شيوخو يوګډ مجلس تريوي اونۍ پوري داصولنامو په نوموړو مادو څېړنه او تحقيق وکړ او بيا په اتفاق دارآؤ دغه اصولنامه تثبيت کړل شوه.

اوس دغه اصولنامه چې په پښتو او فارسي دواړو رسمي ژبو ترتيب شوي ؛ دوه برخې لري يوه يې اداري او بله يې حقوقي ده لمړۍ هغه يې په دولس عنوانونو ،شپږو فصلونو ۲۷۸ مادو ۳۰ تبصرو او ۳ ضميمو مشتمله ده ، او دوهمه يې په ۱۲ عنوانونو. ۲۶۰ مادو ۴۲ تبصرو مشتمله ده.

دغه اصولنامي دافغانستان داسلامي امارت دمشرتابه مقام ۱۴۳۵\۸\۱۵ دفرمان مطابق نافذالعمل کرزيدلي دي .او اوس دافغانستان داسلامي امارت دفرهنګي چارو دکميسيون دتاليف او ترجمي څانګي په کتابي بڼه خپره کړي.

## دسيمينار روستۍ ورځ

دسيمينار دوهمه ورځ هم دلمړۍ په څېر داصولنامو دمادو په قرائت او وضاحت سره په ښه توګه پاي ته ورسيده او دسيمينار دريمه ورځ ماسپښين دري نيمو بجو داصولنامو دمادو قرائت او تشريح پاى ته ورسيده ،وروسته يوه تن عالم درهنمايې وثائق څه مهمې برخې تشريح کړي ، او دسيمينار پاتې برخې ته چې کوم ځانګړي ميلمانه رابلل شوي ؤ هغه په خپل وخت سره يوپه بل پسې راورسيدل په دغه ميلمنو کې درهبري شورا غړى ،دنظامي کميسيون مسئولين ، د ولاياتو واليان او معاونين شامل وو ،دميلمنو له رارسيدوسره وروسته دتميز دعالي مقام محترمو مشرانو خپله په زړه پوري اختتاميه ويناوکړه ،چې دويناځيني مهم ټکي يې داسې ؤ : دامت ترټولو لويه سرمايه دوه ډلې دي چې يوه يې دعلماو او بله دمجاهدينو ده که له دغه دووڅخه يوه نه وي نو امت به بې سيکه او بې روح وي. همدا راز يې قضاة ته يادونه وکړه چې داسلامي امارت دلوړو او اساسي اهدافو څخه دشريعت تنفيذ دى ،او همدغه زموږ داستشهادي ځوانانو او دسنګر دهغو ملنګانو ارمان او ارزو ده چې دخپل ژوند تروروستۍ سلګۍ پوري يې لټوي ،نو زموږ دغه اهدافو ته رسيدل دقضاء استحکام او له يو بل سره دتعاون په صورت کې شوني دى ،او بيايې دذکرشويو اصولنامو په عملي کولو ټينګار وکړ ،او دتطبيق په لاره کې يې امراء ته هم دخپل مسئوليت او په دې لاره کې دخپل ټول کوشش او زيار ايستلو يادونه وکړه ،وروسته يې داصولنامو دځينو مادو يادونه وکړه چې دقضاء دکيفيت په اړه مهمې وي.

او بيايې په افغانستان کې دقضاء په اړه ځيني څرګندوني وکړي ، او زياته يې کړه چې سره له دې چې په افغانستان کې امنيتي وضعه خرابه ده خو په هغه سيمو کې چې دخلګو رسيدګي دمجاهدينو ترمحاکمو پوري کيږي ،هلته خلګ له ښارونو څخه ددې په ځاى چې په نامه ددولت محاکمو ته ورشي دهغه په ځاى دامارت محاکمو ته رجوع کوي ، او دا ځکه چې دامارت قضاة علماء دي او دلته دخلقو حقوق خوندي کيږي ، او دخلګو دستونزو په حل کې زيار ايستل کيږي ،ددې برعکس په نامه ددولت قضاء چې

علمي کدرونه نه دي نو دستونزو دحل په ځاى خلګوته لامشکلات جوړوي ، اودرشوت بازار يې خورا تود دى ، موږ ته دامارت ډيرو قاضيانو وويل :چې اوس خلګ زموږ دابتدائيه محاکموپه فيصلو قناعت کوي اوهمدغه دشريعت فيصله ګڼي اومطمئن وي ورباندي .

وروسته دسيمينار يوې برخي ته مشر ميلمه حاجي ملاصاحب خپله ويناپيل کړه ، په لمړيو کې يې دليري پرتو سيمو څخه راغلو قاضيانو صاحبانو اومفتيانو کراموته ښه راغلى وويل اوبيا يې په دي نامساعده حالاتو کې دهغوئ داوږدو اوستونزمنو سفرونو په کولو اوسيمينارته په خپل وخت سره دځان رارسولو شکريه اداء کړه ، اوبيا يې دسيمينار دانعقاد داړتيااوضرورت په اړه څرګندوني وکړي .داصولنامو په اړه يې دعلماء کرامو دوه کلني هڅې وستايلي ، اوقضاتو ته يې دعملي کولو توصيه وکړه ، اودواليانو او امراء څخه يې هم وغوښتل چې دقضايې ارګانونو سره پوره تعاون وکړي .

وروسته دغه دري ورځني سيمينارونه دهيواد دنامتوشيخو په اختتاميه دعاسره پاى ته ورسيدل .اودهيواد له بيلابيلو ولاياتو څخه دمحاکمو محترم قاضيان ،مفتيان ، شيوخ ، متخصصين ، اورابلل شوي ميلمانه يعني واليان اودکميسيونو نو مشران يو په بل پسې رخصت شول.

والسلام .

---

# داستغفار فايدې اوګټې

**يو ځل امام احمد بن حنبل رحمه الله په سفر ووت. په لار کې يو مسجد ته د شپې تېرولو لپاره ورغى. خو د مسجد ساتونکي له لوري پرې نه ښودل شو چې په مسجد کې شپه تېره کړي، امام احمد بن حنبل ډير کوښښ وکړ چې د مسجد ساتونکي راضي کړي ترڅو ده ته د شپې اجازه ورکړي خو هغه نه منله. اخير امام احمد بن حنبل د مسجد په دروازه کې بستره وغوړوله او ويده شو، د مسجد ساتونکي چې امام وليده راغى او دهغه په کشولو يې شروع وکړه ترڅو د مسجد له څنګ څخه يې ليرې کړي. په همدې حالت کې د يو ډوډۍ پخوونکي ستر ګې پرې ولګېدې چې د مسجد ساتونکى يې په کشولو د مسجد له څنګ څخه شړي.**

**ډوډۍ پخوونکي امام احمد بن حنبل، چې له شکل څخه هم د قدر او عزت سړى ښکاريده، ته په خپل کور کې د شپې تېرولو وړانديز وکړ او امام رحمه الله ورسره کور ته لاړ، په کور کې يې د امام احمد بن حنبل ډير اکرام او قدر وکړ، ډوډۍ پخوونکي اوړه لمدول او استغفار يې په ژبه جاري وه، يوه لحظه يې هم پرته له استغفار څخه نه تېروله، او امام رحمه الله ورته متوجه وه.**

**چې سهار شو نو امام احمدبن حنبل له ډوډۍ پخوونکي څخه، دهغه په کثرت سره د استغفار په هکله وپوښتل، نو موړي وويل چې استغفار يې خپل عادت ګرځولى او هيڅکله يې استغفار نه دى پرې ايښى. که څه هم امام احمد بن حنبل د استغفار په ګټو پوهيده او فضايل يې ورته معلوم وه خو له هغه څخه يې وپوښتل چې آيا د استغفار فايده او ګټه دې ليدلې که نه؟ ډوډۍ پخوونکي وويل: هو، په الله جل جلاله مې دې سوګند وي چې هره دعا مې کړې الله تعالى قبوله کړې ده، پرته له يوې دعا څخه.**

**امام احمد بن حنبل له ډوډۍ پخوونکي وپوښتل چې هغه کومه دعا ده چې ترا اوسه قبوله شوې نه ده؟، هغه وويل: دا چې امام احمد بن حنبل ووينم.**

**امام احمد وويل: زه احمد بن حنبل يم، په الله جل جلاله مې دې سوګند وي چې زه ستا لپاره په ځمکه راښکودل شوم ترڅو الله تعالى ستا دا آرزو هم پوره کړي**

---

# د فحش کتنې بدې پایلې

د کیمبرج پوهنتون څېړنیز راپور

د اسلام مبین دین د فحشا کتلو، او خپرولو څخه منع فرمایلي،اسلام د انسان ژوند وقایه او فحشا یې حرامه ګرځولي، ساینس، او څېړنو هم دا ثابته کړې چې فحشا کتنه، او کول د انساني روح، او جسم لپاره نهایت مضر او خطرناک دی. پر انټرنیټ د فحش ویب سایټونو په کروړونو کي د شمار له کبله د حیا سوځونکو فلمونو کتنه یوه خطرناک پړاو ته رسیدلي، د نورو ناوړه ناروغیو په څیر په دې فلمونو عادي کیدل هم خطرناکه ناروغي ده، د لندن کیمبرج پوهنتون په یوه تازه څېړنه کي جوته شوې چې په فحش کتنی ګڼ شمیر خطرناکي ناروغی رامینځته کیږي، د کیمبرج کالج دغو نویو څېړنو خطرناک واقعیتونه رابرسیره کړي.

١ :په بربنډو فلمونو کتلو د (کولج ایفیکټ) نومي ذهني ناروغي لګیږي، حافظه لمینځه وړي، او خطرناک خولا دا چې د اعصابو پلي هم له کاره باسي، چې له امله یې د انسان مهمي اعضاوي هم کار ورسره پریږدي، یا ضرر ګوري.

٢ :د فحش فلمونو کتونکی د دغو فلمونو داسي عادي شي لکه نشیي چې د نشي عادي کیږي، او د خواږه ژوند له خوند اخیستلو بې برخه وي، د فیصلي قوت یي په بې ساري توګه کم شي، پر ځان یې اعتماد زیانمن شي، او د مایوسي ښکار شي.

٣ :په دغه ناوړه عمل مبتلا اشخاص روزانه له څلورو تر پنځلسو ساعتونو پوري په دغه بیهوده مشغلا کي مبتلا وي.

۴ :عادي فحش لیدونکي پنځوس فیصده له واده کولو بیا تیښته کوي.

۵ :په دغه بدترین عادت مبتلا کس په ذهني ناروغیو سربیره جسماني نقصانات هم وړي.

٦ :د ډیر وخت لپاره فحش کتنه په طبیعت کي خوشکي، غصه او په جنسي رویي کي خرابي را مینځته کوي.

٧ :نولس فیصده فحش لیدونکي د سرعت انزال په ناروغی مبتلا وي، پنځویشت فیصده یې له جنسي تعلق سره دلچسپي نه لري، یودیرش فیصد کتونکي د منزل کیدو صلاحیت نه لري، او څلور دیرش فیصده خلګو کي د نامردی مسئلي څرګندي شویدی.

٨ :له فحش کتني، او له خپل ځان څخه له خوند اخیستو نه توبه کونکي شپیته فیصده خلګو کي جنسی صحت په څرګنده توګه ښه شوي دی.

٩ :په اوه شپیته فیصده توبه کونکو کي د عمومي طاقت، توانائي، او کار کردګی ګراپ پورته شویدی.

١٠ :څېړنو دا هم جوته کړي چې فحش کتونکي د خصنتینو له درد، د منیو له کمښت، له نه انتشار، او نه انزال غوندي سترو ستونځو سره هم مخامخ وي.

۱۱ :څېړنکاران وايي : د پنځوس فيصده فحش کتونکو ماشومان معيوب ، يا کمزوري وي ، يا مورزادي په تلسيميا ، او نورو ورته بيماريو کي مبتلا زيږي ، او يا يي بالکل اولاد نه کيږي.

۱۲ :د فحش کتونکي تل د استمناء باليد غوندي بد مرض عاديان وي ، چي شريعت داسي کسان لعنتيان بللي ، او د محشر په سخته ورځ به يي د الله جل جلاله او د هغه د ټول مخلوق په مخ کي ګوتي اوميدواري (حمل داري) وي ، او ګواهي به وربانـدي وايي.

اوس فيصله ستاسو په لاس کي ده ، که غواړی فحش کتنه جاري وساتی ژوند برباد کړی ، يا بيا ځينی توبه کړی او خوشاله ژوند ولري.

د مسلم په يو روايت کی داسي راغلی چې د ادم په اولادی باندی د زنا له آمله د وجود په هرې برخې باندې څه ناڅه برخه ليکل شوې ده ، نو دسترګو زنا ليدل دی ( نامحرمی ښځی ته ) ، د غوږونو زنا اوريدل ( دنامحرمی ښځی د اواز ) ، د ژبی زنا خبری کول (دنامحرمی ښځی سره ) ، د لاس زنا نيول (دنامحرمې ښځې) ، د پښو زنا تلل (دزنا لپاره) ، زړه بيا ددی غوښتنه او خواهش کوی او بيا ددی ټولو تصديق (منل) يا تکذيب (ردول) د تناسلی غړو لخوا کيږي.

مسئله واضحه ده ، فحش فلمونه ټول دي ، يوازې بربنډ فلمونه نه دي ، د هاليووډ ، باليووډ ، د پاکستانيانو ، چينايانو ، ترکيانو ، او مصريانو او نورو فلمونه ، سريالونه ، ډرامي او ګيت مالي او نور د دا ډول بصري ، سمعي ، او يا د ناولونو لوستنه د سترګو ، غوږونو او خولې له زنا پرته بل څه نه دي ، طبيعي ده چې زړه هم د دغو فلمونو څخه په تاثر کې غواړي چې همدا کړه وړه خپله انسان عملي کړي ، چې د فرد ، او ټولني خلاف خورا خطرناک عواقب ، ابعاد ، او نتايج لري.

تاسوته بايد څرګنده وی چی د هر حرام عمل ژرترژره پريښودل ضرور او واجب دي ، او د ګناه نه وروسته بيا ګناه کول د زړه د تور والي سبب ګرځي ، لکه چې په لاندې حديث کې نبي عليه السلام فرمايي:

کله چی يو بنده د ګناه يو عمل سرته رسوی نو ددغه بنده په زړه باندې ددغه عمل له امله يو تور ټکی لګول کيږي او کله چی دا بنده دغه عمل ترک کړی او دزړه په صدق سره توبه وباسی نو زړه يی بيرته پاک شی او که چيرته بيا دوهم ځل لپاره همدغه دګناه عمل سرته ورسوي نو بيا په دغه تور والي کی اضافه والی راځي ان تر دې چی ټول زړه وربانـدی تورشي او دا هماغه زنګ دی چی الله تعالی ورڅخه په قرآن کی يادونه کړې ده چې : بلکې دهغوی په زړونو بانـدی زنګ لګيـدلی دی او دا دهغوی دخپلو کړو له امله دی.    سنن ترمذی حديث نمبر ( ۳۳۳۴ ) سنن ابن ماجه حديث نمبر ( ۴۲۴۴ ).

او داخبره هم په ياد لرئ چی هر کله يو مسلمان د الله تعالی درضا دلاسته راوړلو لپاره يو ناوړه او بد عمل ترک کړي اولاس ترې واخلي ، الله تعالی ورته ضرور د هغی بدل (انعامات ) ورکوي . نو ځکه څومره ژر چې کيدای شی ددې عمل څخه دزړه له کومی توبه وباسي او دا ډول حرام کارونه او اعمال ترک کړي ، او خپل ځان په داسی کارونو او اعمالو کی مصروف کړی چی ستاسی ددنيا او آخرت د کاميابۍ سبب وګرځي زيات وخت دقرآن پاک تلاوت کوي او ورسره دنبی کريم صلی الله عليه وسلم ، د امهات المومنين او دصحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم د سيرت مطالعه کوی . او د مفيدو تقريرونو او درسونو اوريدلوته مخه کړي ترڅو د الله تعالی ياد او دآخرت ويره ستاسو په زړونو کې پيداکړي او په دی ډول تاسی له حرامو څخه ځان ليری وساتي.

الله تعالی دې موږ او تاسو ټولوته په سمه لاره د تللو توفيق راکړي . آمين والله اعلم

# داسرائيلو وحشت دنړۍ جفا

# او فاتحه غزه

شهيد زوی

دغزې دميړنومسلمانانو دتاريخي استقامت اودحماس دسترو قربانيوو په مقابل کې بالآخره صهيونستي دولت په ګونډوشو ؛دحال په ژبه يې خپله ماتې ومنله اوپه ۵۱ ورځني اوږد اودوحشت نه ډک يرغل کې دڅه لاسته راوړنې پرتـه دسترشکست سره يوځای شرموونکي شاتګ ته اړ شو.

دمصر په منځګړيتوب دحماس اواسرائيلوترمنځ درواني اګست مياشتې په ۲۶مې نېټې داوربندتړون رامنځته شو ؛ پرغـزې داسرائيلو له لورې د ۷ اوونيوو راهيسې دوحشي هـوايي اوځمکنوحملـواوپر اسرائيلو دحماس دراکټي بريدونوله پـه ښکاره پـه رسمي ډول پای ته ورسېده ؛ په رمله کې دفلسطين ولسمشر محمود عباس په تلويزون داتړون په رسمي ډول اعلان او ولس ته يې ددې په رامنځته کېدلو او دفلسطيني قيادت دشرطو نو په منل کېدو مبارکي ورکړه ؛ دمحمـود عبـاس ددې اعلان نـه پـس دواړو اړخونوحماس اواسرائيلوومنله چې ترمنځ يې داوربندتړون لاسليک شوی .

اسرائيل چې پر کوچنۍ غزې يې يرغل ډېراوږد شواوپدې اوږد يرغل کې دسترو وژنو او ورانيو درامنځتـه کولوسره سره هم ناهيلي اوناکام له غزې شاتګ ته اړ اوپه نړۍ کې سخت بدنام شـول نوغوښتل يې چې څـوک ورتـه داوړو پـوزه کېږدي اوپـه داسې طريقه له جنګ نه خلاص شي چې پـه ښکاره يې څـوک پـه ستر شکست تعبيـر نکـړي ؛ مصردې خدمت تـه پـه ډېرې خوښـۍ حاضرشواودحماس سره داوربند په نوم يې اسرائيل ددې سترې اواعصاب شکن جنګ نه خلاص کړل ؛ دابايـد ومنـوچې داسرائيلو اوحماس عسکري ځواک هيڅکله هم نشي پرتله کېدای نوځکه دجنګ تم کېدل بايد په اوربند تعبير نشي خوداچې ددوسايلو پـه لحاظ دهمدې کمزورې حماس په مقابل کې اسرائيلوماتې وخوړه او دحمـاس سره خبرو کولـو تـه اړ شـول نوداسـرائيلو دوحشت ودرېدو نه ځکه په اوربند تعبيروشو.

خو دحيرانتيا خبره داده چې داسلامي هېوادونو په شمول دټولې نړۍ رسنۍ داسـرائيلو دوحشت موقـت توقـف هـم پـه اوربنـد تعبيراوه حال داچې اوربند ددوه برابروځواکونوترمنځ کېږي ؛ ظالم اوجابرزبرځواک که په کمزورې اومظلوم دظلم لړۍ دڅه وخت لپاره ودروي هيڅکله هم اوربند نشي ګڼل کېدای ؛ موقت توقف هم دخاص پلان له مخې دځانګړو اهدافو لپاره کېږي او دادجنګ حصه وي ځکه خو يې اسرائيل اعلانوي اوچې خوښه يې شي پخپله يې ماتوي ؛ داګست په ړومبۍ نېټه چې پـه ړومبي ځـل اوربنـد اعلان شونو ايله ۳ساعتونه تېرشوي ووچې وحشي اسرائيلوبېرته دمظلومو فلسطينيانوقتل عام پيل کړاوپـه څوساعتونو کې يې د ۱۲۰ نه زيات مسلمانان شهيدان کړل .

دجون له ۸ مې نېټې راهيسې پر غزې دصهيونستي دولت له لورې داوسني اوربندتر رامنځته کېدو په ترسره شويوحملو کې د ۵۷۰ کوچنيانو اوکابو ۳ سوه مېرمنوپه شمول ۲زره او ۱۳۰ مسلمانان شهيدان او ۱۱ زره ټپيان شول چې دملګرو ملتونو په وينا په وژل شويو کې ۸۰ سلنه دولسي وګړو ده ؛ دشهيدانو او ټپيانو داشمېره ډېره ستره شمېره ده چې اسرائيل به پرې طبعاً ډېر خوشاله وي خوداچې په غزې کې دډېرستروحشت درامنځته کولوله امله په نړۍ کې دلوېې بدنامۍ پرته بې له کومې سترې لاسته راوړنې اونتيجې اخستلو مغروراسرائيل دجنګ بندولو اود اوربندپه تړون کې دحماس دزياتره غوښتنو منلوته اړ شو نوداد فلسطيني مسلمانانوستره فتحه ګڼل کېږي ځکه خوپه غزې اودفلسطين په نورو ښارونو کې مسلمانان واټونو ته راووتل اودفتحې جشن يې ولمانځلو .

نړيوالورسنيوو پدې اړه په خپلو خپروشويو راپورونو کې ويلي دي چې په اسرائيلو کې سياسي کړۍ اورسنۍ هم داتړون داسرائيلو شکست اود نتن ياهو ددولت ماتې ګڼلې نوځکه ديهودي متعصبو ډلو ،اسرائيلي رسنيوواودحماس دراکټي بريدونوله امله غزې ته دځېرمه بې ځايه شويو يهودانو له لورې په خپل لومړي وزير نتن ياهو سخت انتقادونه روان دي .

دقدرت شان ته ګوره ! داځل چې دغزې مظلومو مسلمانانو په ځمکې کې څوک خواخوږۍ او حامي نه درلودلو په اسماني مرستې يې باورډېرقوي وو؛ عزايم يې عالي اوحوصله يې ډېره لوړه وه خدای تعالی يې هم ستره فتحه په نصيب کړه ؛ دغزې ټولواوسېدونکو داويل چې که دغزې ټول ولس له منځه ځي ولاړ دي شي خوترڅوېې چې غوښتنې نه وي منل شوي اوربند ته به تيار نشي ؛ دجګړې په جريان کې په غزې کې دټولنې دسر کرده افرادو له لورې يوه اعلاميه هم خپره شوه چې پکې راغلي وو : موږ دغزې استاذان ، دټولنې مشران اوفعال اشخاص په غزې کې دانساني قتل عام ګواهان يو اوترهغې اوربند ردووترڅوچې دغزې ۱۸ لکه اوسېدونکوته قانوني آزادي نه وي ورکړل شوې اوله تېرو ٦٧ کلونو اوخصوصاً دتېرو ۷ کلونوراهيسې چې بشري ټول غصب شوي حقوق بېرته نه وي ورکړل شوي اوربندراته دقبول وړندی؛ دغزې دټولو مسلمانانو همدې غوښتنې ته پام سره چې کله دتېرې مياشتې په ۱۷مې نېټې دمصرپه منځګړيتوب دحماس اواسرائيلو ترمنځ دموقت اوربندخبره رامخې ته شوه نو دلسو کلونواوږد اوربند دمنلوپاره حماس ۱۰ شرطونه وړاندې کړي وو؛ حماس غوښتې ووچې سمدستي بايد دغزې له سرحدونو داسرائيلو ټانکونه لرې اوغزه له اسرائيلي فوځونو نه تخليه شي ؛ دغزې محاصرې ته بايد دپای ټکی کيښودل شي ؛ اسرائيلي زندانونوکې دزنداني شويوټولو فلسطينيانو ازادي دې حتمي شي ؛ په غزې کې دې دملګروملتونوترمراقبت لاندې دنړيوال هوايې ډګراوپر سمندربندرجوړېدو ته اجازه ورکړل شي ؛فلسطيني ګب نيونکوته دې اسرائيل تر ۱۰ کيلومتروپورې په سمندر کې دکب نيولواجازه ورکړي ؛ دمصرسره په شريک رفح سرحد اوداسرائيلوپه ټولوپولودې دملګروملتونو فوځ واچول شي ؛ په مسجد اقصی کې له استثنی پرته بايدټولوفلسطيني مسلمانانو ته دعبادت کولواجازه ورکړل شي ؛ په غزې کې به صنعتي پارک جوړېږي ؛ دغزې په بيا ودانولو کې به اسرائيل نه خنډ کېږي ؛غزې ته به دتعميراتي موادوپه انتقال بنديز نه وي اودغزې په داخلي سياست کې به اسرئيلو ته د مداخلې اجازه نه ورکول کېږي .

صهيونستي دولت له څوپر ته نورټول شرطونه ردکړي وو خواوس يې په شوي تړون کې زياتره منلي دي ؛ دهوايې ډګراو سمندري بندرجوړېدلو اودبنديانو دآزادۍ په سربه په راتلونکي مياشت کې حبره کېږي ؛ نورټول شرطونه اسرائيلو منلي دي ځکه خواسرئيلي رسنۍ اوځېړونکي په يوه خوله وايې چې په ۵۱ ورځني جنګ کې سره دستروځاني اومالي تاوانونوپه خپلو شرطونودحماس کلک ودرېدل اومنلوته يې داسرائيلو اړ کېدل دحماس دمقاومت فتح ده ؛ اوداچې په اسرائيلو دحماس له لورې لږ تر لږه ۴زره توغندي وغورځول شول چې له امله يې ګڼ يهوديان دخپلو کورونوپرېښودلوته اړشول اوددې ترڅنګ حماس د٦٧

اسرائيلي فوځيانو په وژلو هم وتوانېدل خوبياهم اسرائيلو دحماس شرطونه په خپلې خوښې ومنل نودا داسرائيلوله لورې دخپلې ماتې اوناكامۍ ښكاره اعتراف دی،،

داسرائيلي دولتي تلويزون نامتو څېړونكي اوجورنالست روني دانيال داوربند پرمهال دحماس له لورې دشرطونوپه وړاندې كولوتعجب ښكاره كړاو ويې ويل چې دټول منځني ختيځ دځواكمن فوځ په مقابل كې تر ۵۰ ورځوپورې دجنګېدلو نه پس په خپلوشرطونودحماس كلك ودرېدلو داثابته كړه چې حماس دټول منځني ختيځ ترټولو ځواكمنه وسلواله ډله ده ؛ نوموړي غزې ته دڅېرمه مېشتويهوديانودخپلو كورونو نه په بې ځايه كېدوجورخفګان ښكاره كړ او ويې ويل چې له بده مرغه چې داځل حماس پدې وتوانېدچې يهودانو ته دخپلو كورونونه دبې ځايه كېدلو ، ناڅاپي مرګ اوله خطرونو ډك ژوند كرغېړنه څېره وروښايي .

هو! له شك پرته چې په ۵۱ ورځني اوږد جنګ كې چې داسرائيلو خونړو حملوغزه په كنډوالې بدله ، د ۲ زرونه زيات تنان يې شهيدان اوله ۱۰ زرونه زيات يې ټپيا ن كړل دادغزې دبې وسو اومظلومو مسلمانانو لپاره خوراډېر سترځاني اومالي تاوان دی خو پوښتنه داده چې آيا خپل دښمن ته ددې سترمالي اوځاني تاوان دوراړولو تر څنګ اسرائيلو دجنګ نه څه ترلاسه هم كړل ؟ نه ! هيڅ هم نه !

دسترو او وحشي هوايې اوځمكنيوحملوله امله په لسګونوزره مسلمانان ټپيان اوشهيدان شول اوټوله غزه په كنډوالې بدله شوه خودمرګ له وېرې له غزې يومسلمان هم ونه وت ؛په كوچنۍ غزې دادومره ستريرغل داځل پدې هيله وچې له اوږدې مودې راهيسې محاصره شوې اوداسلامي اوكفري ټولې نړۍ دحمايت اومرستې نه بې برخې غزه به ژرسرټيټ اوداسرائيلوغوښتنې ومنې ؛اسرائيلو دلويې ورانۍ په رامنځته كولو اودزياتو كوچنيانو اومېرمنو دوژلو له لارې دغزې دمسلمانانوداعصابو مفلوجول غوښتل خوسره له دې چې حمله ډېره درنده اواوږده وه ؛ ورانۍ يې ډېرې اوژنې يې په لوړه كچه رامنځته شوې اواسلامي نړۍ داځل دغزې دمسلمانانو سره ډېره ستره جفاوكړه خو دغزې مسلمانانو نه سرونه ټيټ كړل ؛نه ناهيلي شول ؛ نه يې همت بايلود ؛ نه يې حوصلې ماتې شوې ؛ نه يې دجهاد اوسپيڅلي مقاومت نه لاس واخست ؛ نه يې نړۍ ته ژړا ،فرياد اوخواستونه وكړل ؛ ولس په خپل قيادت بې باوره نه شواو قيادت دولس نه ناهيلی نه شو؛ اونه هم قيادت پرولس ياولس پر قيادت انتقادونه وكړل اوترټولو مهمه داچې دخوراسترو ځاني اومالي زيانونو باوجود داځل قيادت اوولس دواړه په خپلو غوښتنو كلك ودرېدل او اسرائيل دحماس ملكي اونظامي قيادت په كمزوري كولو كې ډېرپاتې راغلل ځكه چې دمدافعت اومقاومت نظريه په فلسطيني ولس اوقيادت كې ډېره قوي شويده چې دنړۍ يو طاقت يې هم له منځه نشي وړای نوځكه يې په يواځې ځان داسرائيلو پرضد په خورالوړهمت دخپلې بقاجنګ وكړاو اسرائيل يې دخپلو غوښتنومنلو ته اړ كړل .

اسرائيلو دخپلو ۶۷ فوځيانو وژل كېدل منلي دي خوحماس وايې چې د ۱۵۰ نه زيات اسرائيلي فوځيان يې وژلي اود ۴سوو نه زيات يې ټپيان كړيدي ؛په داسې وخت كې چې حماس داسلامي نړۍ دهرډول حمايت نه بې برخې دی اسرائيلوفكر كاوه چې داځل به دحماس بېخي نوغی وروباسي په وهم اوګومان كې يې هم نه وه چې حماس به دومره زيات ځاني تلفات ورواړولی شي ؛خوبې له شكه چې فاتح حق اوصداقت دی او فتحه دهغه چاپه برخه كېږي چې دقدرت له تائيد نه برخمن او احساس او عزم يې ماتېدونكي اوتسخيرېدونك نه وي ؛ پرغزې داسرائيلودحملوچې كابو مياشت په پوره كېدو وه اسرائيلي څېړونكي ،، يوري آينوري ،، ليكلي وو چې :موږ بايدومنو چې زموږدښمن په لوړمورال اونوي طرز زموږپرضد جنګېږي ؛ په معجزاتي توګه يې ملكي اوفوځي قيادت ښه فعال دی ؛ دېرلپسې سترو ځاني اومالي تلفاتو سره سره هم دحماس ترشا خپل ولس ولاړ دی اودحيرانتيا وړدا

ده چې دنړۍ دستراتومي ځواک سره دځلورو اوونيوو مسلسل جنګ ددوئ حوصلې ماتې نکړې اونه يې په عزم اواستقلال کې کموالی راغلواونه هم چرته وتښتېدل .

خوبرعکس دحماس راکټي بريدونو کې دمرګ له وېرې غزې ته څېرمه ټول اوسېدونکي يهودان له خپلو کورونونه وتښتېدل ؛ داسرائيلو سياحت دتباهۍ سره مخامخ شو ؛ اقتصاد ته يې په مليارډونو تاوان واوښت ؛ دولت دخپل ولس اورسنيوو دسختو انتقادونوسره مخامخ شو اوپه نړۍ کې اسرائيل بې حده زيات بدنام شول ؛غزه فاتحه ده اواسرائيل دتاريخي ماتې سره مخامخ شول نودغزې اوسېدونکي حق لري چې په غزې کې دکاميابۍ جشن ولمانځي.

داځل په غزه کې دځاني تاوانونو ترڅنګ مسلمانانوته ډېرستر مالي تاوانونه هم اوړېدلي دي ؛دبې طرفو ادارو له لورې دترسره شويو سروېګانو له مخې غزې ته لږترلږه ۵ مليارده ډالرتاوان رسېدلی دی ؛ اسرائيلي ځواکونوپه لويه پيمانه دغزې دودانيو دورانولوهڅې وکړې ترڅوډېرزيات فلسطينيان دخپلو سيمو پرېښودلو ته اړ اوپدې سيمو کې دحماس قوت په کلي توګه له منځه ولاړ شي ؛ ۱۰ زره کورونه په کلي توګه له منځه تللي دي اود۳۰ زرونه زياتو ته تاوانونه رسېدلي دي ؛ دغزې دښار۲۵ سلنه ودانئ دخاوروسره خاورې شويدي او۷۰ سلنه ته يې دومره تاوانونه اوښتي دي چې له اوسېدو وړ ندي اودشجاعيه خو۶۰ سلنه ودانئ دخاورو سره خاورې دي ؛ دغزې ۵ سوه زره اوسېدونکي دخپلو کورونوپرېښودلوته اړشوي وو؛ کله چې دوئ خپلو کورونوته راستانه شول نوټولو دخپلو کورونو په ځای د خاورو ډېري وليدل ؛دغزې دبرق يوازنی ستر سټېشن هم اسرائيلو تباه کړی اوداوبورسولو نظام ته يې هم ډېرتاوان رسېدلی دی ؛ اسرائيلو۱۱۰ جوماتونه ، ۸۳ ښوونځي او۲۷ روغتونونه هم په نښه کړي اوله منځه وړيدي ؛يوازې الشفا روغتون اسرائيلي جنګي طيارو ۵ ځلې بمبار کړ.

اسرائيلو دا ټول ظلمونه وکړل خو دغزې داوسېدونکواوپه ځانګړې توګه دحماس دازادۍ احساس ته په ماتې ورکولو کې ناکام شول ؛ دوسايلوپه لحاظ دحماس فوځي ځواک داسرائيلو دفوځي ځواک سره بېخي نشي پرتله کېدای ؛ دحماس دداړو فوځي ډلو الاقصی اوقسام دفوځيانو شمېر د ۷ زرونه تر ۸ زروپورې دی چې دجنګ په ورځو کې يې د۱۰ نه تر ۱۲ زرو پورې نسبتاً کم روزل شوي ځوانان مرسته کوي ؛ حماس سمندري اوهوايي ځواک نه لري ؛ د اورې نه دټانک اوطيارې ويشتونکي او دځمکې نه ځمکې ته دلنډ اومنځني واټن ويشتونکي توغندي لري ؛ اسرائيل چې اتومي ځواک دی په همدې عادي وسلو ورسره حماس جنګېږي ؛ حماس په خپلو دې عادي توغندو داسرائيلو مختلف ښارونه په پرله پسې توګه په نښه کړل چې داسرائيلو دتوغندوضدپټېرياټ نومي نظام ايله يو څو توغندي په هواکې خنساکړيدي ؛دپټېرياټ ترڅنګ اسرائيلو په هوا کې دحماس دتوغندودخنساکولو په موخه په ملي هوايي دفاع کې د (Iron Dom) په نوم دفاعي سستم هم داخل کړ خودحماس توغندو ددوئ دانظام هم سخت ناکام کړ نو ځکه دحماس دتوغندودمرکزونو دتباه کولوپه موخه يې فوځ ځمکنئ حملې تېزې کړې چې پکې دحماس داتلوجنګيالوپه وړاندې دسختې ماتې سره مخامخ شول ؛ اسرائيل پرغزې دحملودجواز لپاره همداتوغندي پلمه کړي او داتبليغات کوي چې حماس داسې هلاکونکي توغندي اومايينونه لري چې داسرئيلووجود ته خطر دی ؛ که څه هم داداسې دروغ دي لکه پرعراق ديرغل دجوازلپاره چې امريکا جوړ کړي وو ؛ حماس هيڅکله داسې نظامي ځواک ندی چې داسرائيلو وجود ته خطر جوړ شي خولږترلږه پدې وتوانېدچې داسرائيلو دحملوپه درېمه شپه داسرائيلو بن کورين بين المللي هوايي ډګراو داسرائيلوپه جنوب کې د ،، ديمونه ،، اتومي بټۍ په نښه کړي ؛ دحماس دهمدې توغندو دښکار کېدو له وېرې ۷ مليونه اسرائيليانو په کورونو کې جوړو کړو سمځو کې خپل زيات وخت تېراوه ؛داسرائيلو دفوځي چارو ماهرين په يوه خوله داوايي دتېرو کابو ۸ کلونو راهيسې داقتصادي بنديزونو اودمصر او اسرائيلو دمحاصرې سره سره هم دحماس په عسکري طاقت کې کموالی نه بلکې ډېروالی راغلی دی ؛ داسرائيلو

دجاسوسي شبکې موساد پخواني مشر ،،داني ياتوم،، ويلي دي چې داسې ښکاري لکه چې حماس جنګيالي له جبونوتوغندي راوباسي اوداسرائيلو پرلوريې فاير کوي .

پرغزې داسرائيلو اوسنو وحشي بريدونو اوپکې انساني قتل عام ته چې وګورونوداسې ښکاري لکه په نړۍ کې چې بيخي دځنګل قانون نافذ وي ؛ دبشري حقوقو؛ دانسانانوترمنځ متقابل احترام ؛ مذهبي ازادۍ اوانساني مساوات ټولې خبرې بې معنی دي ؛ لويديځ او خصوصاً نړيوال زبرځواکونه يې په نړۍ کې دخپلو اهدافو دحصول اودخپلو افکارو دمسلط کولو لپاره دآلې اوسپرپه توګه استعمالوي ؛ داخومره دحيرانتيا خبره ده چې که په نړۍ کې چرته دنامسلمانوپه ښځه کې ازغی هم لاړشي نودملګروملتونوداداره ،اروپايي اتحاد اودبشر دحقوقوپه نوم نړيوالې ټولې اداري په يواوازمتحرکې شي اودلږکيو دحقوقودساتنې په نوم اسلامي هېوادونه دجغرافيايي ويش پورې هرهغه څه ته اړباسي چې زړه يې غواړي خوپه غزې کې چې داسرائيلوله لوري ټوله غزه په کنډوالې بدله او داسې انساني قتل عام رمنځته شوی چې دبشر دحقوقونړيوالې اداري نه نيولې داسرائيلو دبدنامې جاسوسې اداري موساد دپخوانو مشرانو پورې ټول وايې چې داستر بشري جنايت دی نوبايد اسرائيل جنګي مجرمين وګڼل شي ؛ امريکا اوټول لويديځ پرځای ددې چې ددې سترجنايت دودرولو لپاره يې کوښښونه کړي وای برعکس يې ددې هرڅه ملامتيا پر حماس وراچوله اواسرائيلوته يې دبرأت ورکولو ناکام کوښښونه کول .

دهاګ نړيواله محکمه او دجنيوا کنونسيون دواړه پدې خبرې يوه خوله دي چې عبادت ځايونه ، تاريخي مقامات روغتونونه او ښوونځي به په جنګ کې نشي په نښه کولای اوچې کوم هېواد داسې وکړي فوځي اوملکي مشران به يې جنګي مجرمين ګڼل کيږي ؛ دلته اسرائيلو داهر څه وکړل ؛ ۱۱۰ جوماتونه ، ۸۳ ښوونځي ،او۲۷ روغتونونه يې په نښه کړل ؛ دجولای په ۲۵ مې نېټې يې دملګرو ملتونو ښوونځی هم په نښه کړ چې پکې ۱۵ کوچنيان شهيدان او۲۰ ټپيان شول ؛ دملګروملتونو سرمنشي بان کي مون ددې پېښې په رسمي غندنې بسيا وکړه نورپدې ټول وحشت دملګر ملتونو اداره ، اروپايي اتحاد يادبشر دحقوقو دساتنې ټېکداره امريکاچوپه خوله پاتې شول او هيڅوا هم داجرأت ونکړ چې اسرائيل جنګي مجرم وګڼي بلکې برعکس امريکا داسرائيلووحشي حملې رواعمل ګڼلواوبيا بيايې داسرائيلو سره دمرستې کولو امادګي هم ښکاره کوله ؛ دامريکا اسلام او مسلمان دښمني دی حدته رسېدلې چې اوس هم دامريکا د باندنيو چارو وزير جان کيری وايې چې د فلسطين او اسرائيلو تر منځ د تاوتريخوالي مسئوليت د حماس په غاړه دی ؛ دامريکا ولسمشر بارک اوباما او د اروپائی اتحاد غړو هېوادونو خو اسرائيلو د وحشت نه د حمايت په لړ کې لا دمخه ويلي دي چې اسرائيل د خپل ځان نه د دفاع حق لري او دا چې اسرائيل د حماس دتوغندويې بريدونولاندې دي .

عجبه دفاع ده ؟! د فلسطينيانو غصب شوې خاورې ته دې د حماس له لورې يو راکټ ويشتل کيږی بيا دې وحشي اسرائيل د زوږ ،ځوان مېرمنې کوچنې د امتياز پرته د غزې د هر اوسېدونکي د وژلو او د جومات ، مکتب امبولانس روغتون او هر کور د ويشتلو او لوټې لوټې کولو حق ولري اسرائيل دې اتومي ځواک وي د نړۍ تر ټولو عصری وسلې دې په لاس ولري پر غزې دې مسلسلې ځمکنۍ او هوائې حملې رواني وي چې پکې په زرونو تنان شهيدان او ټپيانېږي او ټوله غزه په کنډواله بدلېږي او بيا دې هم امريکا او نور لويديځ وايې چې اسرائيل دحماس تر حملو لاندې دی ؟!

د ۲۰۰۸م په دسمبر کې ترسره شوي خو نړي بريد کې په وژل شويو ۱۳سوه او۹۱ تنانو کې هم اکثريت د مېرمنو او کوچنيانو واوداوسنې يرغل يو دردناک اړخ هم دادی چې دفلسطيني مسلمانانو دمورال غورځولوپه موخه په ځانګړې ډول کوچنيان په نښه شول ؛ دملګرو ملتونودمر کزونوپه شمول چې به کوموځايونوته زيات کوچنيان اومېرمنې راټولې شوې هماغه ځايونه به زيات په نښه کېدل په سوشل ميډيا باندې دشهيدانو شويو کوچنيانو ډېرزيات ويډيو کليپونه خپاره شول چې له امله يې داسلامي نړۍ

ترڅنګ د اروپا په ولسونو کې هم داسرائیلو پر ضد دیادولو وړ غبرګونونه رامخې ته شول خوغلامو نړیوالو رسنیو خپله بې طرفي بېخي ونه شوه ساتلای ځکه خو په تاریخ کې په ړومبي ځل دبی بی سي ددفتر مخې ګڼو خلکولاریون وکړاودنړیوالورسنیوطرفه قضاوت یې وغندلوچې په نتیجه کې یې دمنځني ختیځ لپاره دبی بی سی نماینده جریمي بوون له خپلې دندې ګوښه کړای شو .

بس له دې هرڅه داسې ښکاري چې کفري نړۍ دمسلمانانو نسل کشۍ پخه اراده کړیده ځکه خو دوسطي افریقا نه تربرما اودسنګیانګ نه ترفلسطین پورې په ډېرې بې دردۍ دمسلمانانوداسې قتل عام روان دی لکه چې دوئ انسانان نه وي خو کفري نړۍ باید پدې پوه شي چې ددې بې انصافۍ اونفاق نه ډک عمل سزابه خامخا وڅکي ؛ دنړۍ په هر ګوټ کې دمسلمان په کورکې دبل اورلمبې به ددوئ ترکورنو هم ور رسېږي بیابه لاسونه مروړي خو وخت به ځنی تېروي .

دغزې له ۲۱ سوونه زیات مسلمانان شهیدان شویدي چې پخپله دملګرو ملتونوله لورې دخپرو شویو اعدادو ارقامو له مخې پکې دکوچنیانو او مېرمنو په شمول د۱۸ سوه نه زیات ملکي وګړي دي ، ملګرو ملتونوداهم ویلي دي چې په غزې کې په ټولوو ژل شویو کې ایله د ۲۲٦ تنانو تړاو دوسله والو ډلو سره دی ؛ ۱۸ سوو نه دزیاتو بې ګناه ملکي وګړو په شهادت خو پکار وه چې دملګرو ملتونواداري له خپل لورې اسرائیل جنګي مجرمین ګڼلي اوپرضد یې قانوني کړنې ترسره کړې وای خودتل په څېر داځل هم دې اداري او لویدیځ دغندنې دڅوټکو او ارقامو خپرولو پرته په دې هرڅه سترګې پټې کړې ؛ اسرائیلو ته سزا ورکول خو ډېره لرې خبره ده داسرائیلو دروان وحشت دودرولو لپاره یې کوم کوچنی اقدام هم ونکړ ؛ لویدیځ خوهسې هم داسرائیلو تر شا ولاړ دی اودملګرو ملتونو اداري هم خپل ناپیيلتوب ندی ساتلی خوافسوس داسلامي نړۍ پرحال چې دبولیویا په نوم نا اسلامي هېواد اسرائیل تروریست هېواد وګڼلو اوله تېرو ٦۲ کلونو راهیسې چې اسرئیلیانو دلته ازاد تلل راتلل کول اوس یې ددوئ په تلو راتلو کلي بندیز ولګولوخواسلامي نړۍ پدې دومره ستر ناورین هم بې تفاوته پاتې شوه اوخپله یوه سلنه مسئولیت یې هم ادانکړ ؛ اوآی سي په څرګندو ټکو خپله عاجزي اعلان کړه ؛ اردن او سعودي لا د اسرائیلو له حملې وړاندې حماس تروریست ګڼلی و او دمصر خو داحال و چې په غزې کې د اسرائیلو له لورې په پنځمه ورځ دشهیدانو شمېر۱۲۲ اوپه سونوټپیان شوي وودازهر پوهنتون اودملګرو ملتونودسرمنشي بان کی مون په غوښتنې یې مصرته دټپیانو دانتقال په موخه درفح سرحد پرانست او ویې ویل چې سبابه هم پرانستی وي خومتأسفانه چې دمصر دولت په خپلې دې وعدې ټینګ پاتې نه شو اوسبا یې دغزې نه دراتلونکو ټپیانو پرمخ درفح سرحد وتړلو؛دغزې دروغتیا وزارت ویاند ډاکټراشرف القدره ویلي چې په کومه ورځ مصر دفلسطیني ټپیانوپرمخ درفح سرحدپرانستی وو په ٦ سوو کې یې ایله ۱۱ټپیانو ته مصر ته د داخلېدو اجازه ورکړې وه .

دعربي نړۍ مشهور تلویزون الجزیره دجولای په ۱۲ مې نېټې وویل چې داسرائیلو دباندنیو چارو مرستیال وزیر داسرائیلو ددولتي رادیوسره یوې تازه مرکې ددې اعتراف کړی چې دغزې پرضد دروانوعملیاتو په هکله یې مصرترشا ولاړ دی؛ دمصر دباندنیوچارو وزرات داسرائلو ددې دعوې پخلی وکړ او داعملیات یې دحماس دتوغندویې بریدونوجوابي عکس العمل وبللو

بس په اسلامي نړۍ کې ترکیه یواځنی هغه هېواد وچې په سختو ټکوبه یې ددې وحشت غندنه کوله او اوس چې طیب اردګان دترکې نوی ولسمشر شونودرواني اګست میاشتې په ۱۱ نېټې یې دقاهرې نه ترکې ته دغزې دټپیانودانتقال لپاره امبولانسي چورلکې ورواستولې او په دومره قدر یې قبول کړل چې انقرې ته په رسېدو یې مخې ته دترکې دباندنیوچارو وزیر دخپلې مېرمنې سره یوځای راووت .

هو ! نن د غزې جوماتونه شهیدان دي ، لارې او سرکونه وران دي ، اوبه اوبرېښنا منقطع دی دفترونه روغتونونه او د لوړو زدکړو اداري لوټې لوټې دي ، هر دیوال په وینو سور دی ، له هر کور نه جنازه وتی ده او ګڼو کورونو خپل ټول غړي له لاسه ورکړي

هم دي د ځمکنو بزدلو اسرائيلی فوځيانو له لورې د بې وسلی ولسي وګړو د غلبيل شويو جسدونو او په درندو بمباريو کې د مظلومو انسانانو د بدنونو د شيندل شويو غړو دردونکی مناظر دغزې داوسېدونکو مخی ته دی ؛ د مظلومو فلسطيني خويندو او مېندو دردونکو آهونو فضا سخته غمجنه کړی او د سونو زرو بورو کونډو او يتيمانو د مظلوميت نه پر ډک حالت اسمان ژاړي خو متاسفانه چې پر اسلامي نړۍ د مسلطو د بی حسۍ دشرم نه ډک حالت له منځه نه ځي. خبره ديوې ورځې او ونۍ، مياشتې يا کال نده د ۱۹۳۸ دمۍ په ۱۵ مې نېټې چې دعاصب اسرائيلي دولت بنسټ کېښودل شو له هماغې ورځې راهيسې په تېر ٦٧ کلونه که له يوې خوا پر مظلومو فلسطينيانو داسرائيلو دبی ساري ظلم او وحشت نه ډک دي نو بل لور ته دا ٦٧ کلونه دحال په ژبې دمسلمانانو داجتماعي بی حسۍ او دفلسطيني مسلمانانو سره داسلامي هيوادونو دمشرانو دجفا او نفاق ګواهي ورکوي.

خو له نېکه مرغه چې پر اسلامي نړۍ دمسلطو حاکمانو دبی حسۍ او جفا پډې ستر عالم کې دفلسطين او په ځانګړي ډول دغزې مسلمانانو داحساس اسلامي، غيرت، دين، ديني شعايرو او نواميسو ته دوفا بی مثله او نه هېرېدونکی تاريخ جوړ کړ

داسلامي نړۍ دې اجتماعي بی حسۍ دوئ ناهيلي نکړل، دشيخ احمد ياسين رحمه الله تعالی په لاس دحماس په نوم ايښودل شوی جهادي غورځنګ چې دتيګو ويشتلو نه پيل شوی و داتومات وسلو او راکټونو نه هم اوښتی او تر داسې توغندو رسېدلی چې دغاصبو اسرائيلو زياتره ښارونه پرنښه کولای شي.

په ٦٧ کلونو کې فلسطينيانو دګوليوو او بمونو په باران، دبارودو په طوفان، په ولګې، قحط، ورانيو او هجرتونو کې ژوند تېرول زده کړل ؛ داغيارو دپلانونونو او دخپلو منافقو ليډرانو دپنجو نه دځان ويستلو لارې يې وموندې، فلسطنيانو دا زده کړه او نړۍ ته يې وښودله چې خپل مظلوميت او مغلوبيت څرنګه دقربانيو په زور په طاقت بدلولی او خپل درد ته څرنګه دوا موندلی شي؟

په تېرو ٦٧ کلونو کې په لسګونو زرو فلسطينيانو خپل ځانونه قربانۍ ته وړاندې کړل خو دسيمې مسلمانانو ته يې دذلت نه دراوتلو ستر جوهر جهاد او شهادت ور په ګوته کړل؛ په شهيدانو شويو کې عام مسلمانان او مجاهدين او دډاکټر شقاقي، ډاکټر رنتيسي او شيخ احمد ياسين په څېر قائدين هم شامل دي.

نن دفلسطين دهر بچي په غوږ کې دجهاد او شهادت دشعارونو اذانونه کېږي، عظيمې مېندې خپلوبچوته داسلام، ملت، خاورې او ديني شعايرو نه ددفاع په لار کې دايثار او قربانيو درسونه ورکوي ځکه خو دسترو ظلمونو ؛ دنړيوال کفر دمسلسلو سازشونو او دمسلمانانو دحاکمانو دپرلپسې جفاګانو او غداريو سره سره هم پدې ولس کې دفلسطين دسپېڅلې خاورې او اقصی دازادۍ او ددې ځای نه ديهودانو دشړلو احساس ورځ تربلې زياتېږي؛ دنر، ښځې، ځوان بوډا او کوچني دامتياز پرته نن دهر فلسطيني دا شعار دی چې دخپل سر نه به تېر شي خو په پاکې ځمکې به ديهوديانو ناپاکه قبضه ونه زغمي اودخپلې خاورې دلوېشت دازادۍ لپاره به خپل جهاد جاري وساتي.

هغه ورځ به ژر راشي چې ړومبۍ قبله به ازاده او داسرائيلو په نوم غاصب دولت به دنړۍ دنقشې نه لرې شوې او نړۍ ته به امن او لويه خوشالي راغلې وي.

# زه څوک یم ؟!!

الف لام

نه پوهیږم له کومه ځایه یې پیل کړم که په خپله خاوره کې دصلیبي یرغل په وړاندې مسلحانه مبارزه کوم پردي یادیږم !! اجیرحکومت اودصلیب غلامان خومې دوروستۍ وسلې په توګه له دې ټکي په استفاده شعوراً پردي بولي ، خو هغوی چې په دې دښمنۍ او دصلیب په غلامۍ کې ښکېل نه دي له دې پروپاګنډې نه په تاثرمې په غیر شعوري توګه پردی یا پاکستانی بولي، او که دهجرت دیارته لاړشم کابلی اومهاجریم؛ خامخا دې دمهاجرت اسناد راسره وي ، که نه نو جېل مې ځای دی ؟!!

ماچې په هردورکې د یرغلګرو مقابله کړې تل راسره همدا ناځواني شوې، خو بیا وروسته چې حقیقتونو او واقعیتونو ځای نیولی بیانو دتاریخ اتل یادشوی یم ، دملا مشک عالم، غازی محمدجان خان ، غازی محمدایوب خان او.....په نومونو دهیواد دویاړ څلي رانه جوړ دي ؟؟

زمونږ د "روان شناسۍ" استاد به په صنف کې راته ویل چې زمونږ د ښځو له مخې دهیواد مینه دنورو خلکو په نسبت په هغو خلکو ډېره وي چې له جومات اومدرسې سره یې تړاو وي، ځکه هغوی دمادیاتو په وړاندې له دې مینې نه تېرېږي که څه هم دسر په بیه ورته تمامېږي او زمونږتېر تاریخ له دې بېلګو ډک دی.

که دې خبرې ته لږ ځیرشو او ډېر لرې نه بلکې په وروستیو دوو پېړیو کې دتاریخ پاڼې راواړوو نو داحقیقت به دسرپه سترګو ووینو ، او وبه ګورو هغه اردو اوفوځ چې دهیواد اوخاورې دساتنې په نوم او امید دملت له زبېښلو وینو جوړ شوی وي ؛ دهیواد او خاورې دارضی تمامیت ددفاع په ځای څنګه داستعمار اویرغلګرو په خدمت کې استخدام شوې اوڅه ډول یې دخپل مسلمان ملت په وړاندې دتوپک شپېلۍ را اړولې ؟؟!

په نولسمه پېړۍ کې دسره شوروي دیرغل او په شلمه پېړۍ کې دامریکا اوناټو دډله ایز یرغل په وړاندې تسلیمي اودهغوی په خدمت کې استخدامېدل یې ښه مثالونه دي.

دلته هغه با احساسه افسران استثنا کوم چې دجهاد په لیکو کې له مجاهدینو سره اوږه په اوږه ودرېدل بايي په اردوکې دننه دايمان اوهيواد ساتنې نه هېرېدونکې کارنامې ترسره کړي.

دتعجب ځای خودادی چې زه په ایماني جذبه او الهي فرض حکم خپل سرقربانوم او دبدن غوښې مې ټوټه ټوټه کيږي دا دپردو لپاره کوم اودپاکستان مداخله ده!! هغوی به يې مادي بدله راکوي چې نه پوهيږم بيابه زه کوم هوس او دنیاوي ارمان پرې ترسره کوم؟!! اوهغه چې په ښکاره له وسلو او زور سره دهيواد پرخاوره مسلط ګرځي او افغاني مېندې اوماشومان وژني يرغل، مداخله پردی او استعمار نه دی!!؟؟

همدلته ده چې دعقل اوفکر خاوندان په دې پوه شي چې دطالب مبارزه دنورو لپاره نومول دلته داشغال ددوام لپاره څه ډول حربه ده؟او چا په کار اچولې؟؟!!

زما مبارزه ولې دمادياتولپاره بلل کيږي؟

ايا زه دنورو ځوانانو په څېر همداسې هوس او آرمان نه لرم؟

زما زړه دغوښې زړه نه دی؟چې ددې عمر دمينې نرۍ څړيکې يې ودردوي؟!

زما هم همداسې پلار، مور، خويندې او ورونه دي!

همداسې کور، بچيان او ژوند لرم...

داهرڅه دکومو مادياتو لپاره پرېږدم؟!! او ولې يې پرېږدم؟؟

له ایماني قوت اوديني احساس پرته به نور کوم څه وي، چې له دې هرڅه ورته تېرېږم؟اوکوم سالم فکر به يې ومني؟؟!

دهمدې خاورې بچی يم، دهيواد غرونه رغونه مې دې خاورې ته په وفاشاهدي وايي، دهيواد دآزادۍ سندرې دهغو په حق کې ويل شوې چې له يرغلګرو سره يې دهيواد له تړو او درو مبارزه کړې، نه دهغو په حق کې چې په مخکې يې په منډو سترې دي اودخپلو هيوادوالو په ورکه پسې راوتلي، چې دسبا ورځې تاريخ به يې ونه ښيي او هرو مرو به يې پردي پال او تالي څټي وبولي.

نو زه پردی نه، ددې خاورې اصيل بچی، ستادنن ورځې نوم ورکی اوسباورځې اتل طالب يم

# حقوق زن کلمة حقٍ یرید بها الباطل

## زن نیمی از پیکرهٔ جامعهٔ انسانی است!!!

فهیم عمر

این شعاری است بلند آوازه و پر طمطراق، گاهی از گلوی پاکی بلند شده و ارادهٔ خیر دارد و گاهی مورد استفاده استعمار فریبکار قرار میگیرد و همان فرمودهٔ امیرالمؤمنین علی بن ابی طالب رضی الله عنه در موردش صدق میکند که فرموده بود: سخن حقی است ولی برای هدف باطلی استفاده میشود.

جامعهٔ افغانستان و ملت آن همیشه متهم به پامال نمودن حقوق زن است، این که این ادعا تا چه اندازه درست و تا چه اندازه نادرست است نیاز به تأمل دارد ولی جای تعجب اینست که افغان ها از سوی کسانی به توپ این اتهام بسته میشوند که آنها خود کمترین ارزش و اهمیتی به این قشر غفیر و تأثیر گذار قایل نیستند آنهایی که هدف شان آزادی زن نیست بلکه آزادی رسیدن به زن است...

آنهایی که زن را همچون کالا و ابزار تجارتی استفاده کرده و صرف از جمال و زیبایی اش استفاده میکنند و زمانیکه به سن کهولت رسید همچون جنسی که تاریخ انقضایش به سر رسیده باشد در گوشه یی پرتش کرده و هیچ ارجی به پایش نمیگذارند.

آیا آنعده از زنان ساده دل که صدای این دعوتگران بسوی باطل را طنین انداز میکنند و با آنان هم آواز میشوند تاحال به این نکتهٔ مهم و حساس دقت کرده اند؟

خواهرم و برادرم! زن در پهلوی حقوقی که خواستار آن هستند مسؤلیت هایی نیز به عهده دارد مسؤلیت خطیر و بس بزرگ...

و آیا امکان دارد کارگری قبل از اتمام و به سر رسانیدن مسؤلیتش حقش را بدست بیاورد؟؟؟

پس بهتر است اندکی به این نیز بیاندیشیم که زن مهمترین و بزرگترین وظیفه را در اجتماع به عهده دارد، در طول تاریخ پربار تاریخ اسلام زن پشتیبان مرد بوده است، زن سیاستمدار بوده است، زن فقیه ترین انسان بوده است، آیا جانفشانی های ام المؤمنین خدیجه رضی الله عنها برای پشتیبانی از دعوت مقدس اسلام گواه این مدعا نیست؟ و آیا اسلام آوردن ام المؤمنین خدیجه به عنوان اولین زن و اولین انسان جزو افتخارات زنان امت اسلامی شمرده نمی شود؟ آیا از خود گذری حضرت سمیه اولین شهید زن در راه حفظ اعتقادش گواه این مدعا نیست؟ آیا فقاهت و دانشمندی ام المؤمنین عایشهٔ صدیقه رضی الله عنها گواه مدعای ما نیست؟

بلی! اسلام در ابتداء وظیفهٔ زن را مشخص ساخت و با دادن مسؤلیت و جیبهٔ تربیت و پرورش بزرگمردان تاریخ به او ارج گذاشت اورا از شر قوانین و قواعد پوچ جاهلی که فقط زنده به گورش میکردند و فقط برای خواهشات نفسانی استعمالش میکردند رهایش ساخت و اورا جایگاه و

مرتبهٔ بلندی عطافرمود، اما اکنون همان عصر جاهلی دوباره بر گشته است ،همان قوانین جاهلی که زمانی از سوی مشرکین عرب اعمال میشد اکنون با اندکی تغییر از سوی غرب و غربیان برپا میشود،زن را زنده به گور نمی کنند اما عزت و عفتش را به حراج میگذارند اورا وسیله ای برای تبلیغات تجارتی خود ساخته اند و اورا از خط اصلیش که پرورش رهبران و تاریخ سازان است ،منحرفش ساخته اند وآیا غرب جز این چیزی دیگری میخواهد؟

پس یگانه آیین و یگانه سنگری که مخلصانه از زن ،وجایب و حقوقش دفاع میکند اسلام است و بس ،نه آنهایی که خواستهٔ شان حق زن است و هدف شان کشیدن زن از کانون مستحکم خانواده به میان جامعهٔ پر از شر و شور و پر از گرگ های درنده....

## د ژوند د ځينو اوصافو نښې...

د لوړ همت نښه دا ده، چې د ځان لپاره يوازې په هغه څه راضي شي چې تر ټولو غوره وي.

د زهد نښه دا ده، چې له دنيا څخه مخ واړوې، په داسې حال کې چې دنيا تا ته مخه کړې وي.

د پرهېزګارۍ نښه دا ده، چې له شبهاتو ځان وساتې.

د سخا او کرم نښه دا ده، چې په هغه څه کې هڅه وکړې، چې خلک يې په اړه نه غږېږي، نه په هغه څه کې، چې د هغوی ترمنځ معمول وي.

د لويوالي نښه دا ده، چې پر حقه لاره ثابت پاتې شې که څه هم چې ستړياوې دې زيات شي.

د ريښتينولۍ نښه دا ده، چې خبره دې په ډاډمنتيا، وېره، طمع او نهيلۍ کې يو ډول وي.

د حکمت نښه دا ده، چې لومړی په خپله پر هغه څه عمل وکړې چې خلک ورته رابولې.

د نيکو اخلاقو نښه دا ده، چې په خپل کور کې تر ټولو خلکو ښايسته اخلاق ولرې.

د تقوی نښه دا ده، چې له خلکو سره ښې اړيکې ولرې.

د الله تعالی لپاره د غيرت نښه دا ده، چې له هغه چا سره ملګرتيا ونکړې، چې د هغه د حدودو پروانه کوي.

د تواضع نښه دا ده، چې د کاميابۍ پر مهال پر ځان ونه وياړې.

د استقامت نښه دا ده، چې اخلاقي فضيلتونه دې د شرايطو د بدلون پر وخت بدل نکړې.

د اخلاص نښه دا ده، چې د الله تعالی رضاء تر لاسه کول د خلکو په رضاء او خوښۍ غوره وبولې.

د صبر نښه دا ده، چې خلکو ته شکايتونه ونکړې.

د شکر نښه دا ده، چې د هغه چا په حق کې د نيمګړتيا له امله حياء درشي چې له تا سره يې نېکي کړې.

له خپل بنده سره د الله تعالی د مهربانۍ نښه دا ده، چې سخت کارونه ورته اسانوي، په لږو يې راضي کوي، لږ شيان ورته نږدې کوي او له هغو دردونو يې ساتي چې د زغملو توان يې نه لري.

د حقيقت نښه دا ده، چې ساده او واضح وي او عالم او جاهل دواړه پرې وپوهېږي، خو که چېرته داسې ګونګ او مجهول وي چې هېڅوک پرې نه پوهېده، مګر دا چې سختي او رنځ وګالي، دا نو بيا حقيقت نه؛ بلکې هسې تش خيال او وهم دی.

د بصيرت نه لرلو نښه دا ده، چې انسان د خپل کور له تيارې په تنګ شي، په داسې حال کې چې د خپل زړه تيارې ته خوشحاله وي!

د بدبختۍ علامه او نښه دا ده، چې انسان د قبر خپګان ته اندېښمن وي؛ خو د خپل زړه خپګان ته هېڅ ارزښت نه ورکوي!

# د استغفار فایدې او ګټې

یو ځل امام احمد بن حنبل رحمه الله په سفر ووت. په لار کې یو مسجد ته د شپې تېرولو لپاره ورغی. خو د مسجد د ساتونکي له لوري پرې نه ښودل شو چې په مسجد کې شپه تېره کړي، امام احمد بن حنبل ډېر کوښښ وکړ چې د مسجد ساتونکي راضي کړي ترڅو ده ته د شپې اجازه ورکړي خو هغه نه منله. اخیر امام احمد بن حنبل د مسجد په دروازه کې بستره وغوړوله او ویده شو، د مسجد ساتونکي چې امام ولیده راغی او د هغه په کشولو یې شروع وکړه ترڅو د مسجد له څنګ څخه یې لیرې کړي. په همدې حالت کې د یو ډوډۍ پخوونکي سترګې پرې ولګېدې چې د مسجد ساتونکی یې په کشولو د مسجد له څنګ څخه شړي\.

ډوډۍ پخوونکي امام احمد بن حنبل، چې له شکل څخه هم د قدر او عزت سړی ښکاریده، ته په خپل کور کې د شپې تیرولو وړاندیز وکړ او امام رحمه الله ورسره کور ته لاړ، په کور کې یې د امام احمد بن حنبل ډېر اکرام او قدر وکړ، ډوډۍ پخوونکي اوړه لمدول او استغفار یې په ژبه جاري وه، یوه لحظه یې هم پرته له استغفار څخه نه تېروله، او امام رحمه الله ورته متوجه وه.

چې سهار شو نو امام احمدبن حنبل له ډوډۍ پخوونکي څخه، دهغه په کثرت سره د استغفار په هکله وپوښتل، نوموړي وویل چې استغفار یې خپل عادت ګرځولی او هیڅکله یې استغفار نه دی پرې ایښی. که څه هم امام احمد بن حنبل د استغفار په ګټو پوهیده او فضایل یې ورته معلوم وه خو له هغه څخه یې وپوښتل چې آیا د استغفار فایده او ګټه دې لیدلې که نه؟ ډوډۍ پخوونکي وویل: هو، په الله جل جلاله مې دې سوګند وي چې هره دعا مې کړې الله تعالی قبوله کړې ده، پرته له یوې دعا څخه.

امام احمد بن حنبل له ډوډۍ پخوونکي وپوښتل چې هغه کومه دعا ده چې تراوسه قبوله شوې نه ده؟، هغه وویل: دا چې امام احمد بن حنبل ووینم.

امام احمد وویل: زه احمد بن حنبل یم، په الله جل جلاله مې دې سوګند وي چې زه ستا لپاره په ځمکه راښکودل شوم ترڅو الله تعالی ستا دا آرزو هم پوره کړي

srak

# خدایه ویې ساتې

(الهام)

دا چې پالونکی د قرآن دی خدایه ویې ساتې
درنو ستورو لوی کاروان دی خدایه ویې ساتې

دهغه ښکلي غیرتي په مسیر اخلي قدم
چې په وړانګو سپین جهان دی خدایه ویې ساتې

دایماندارې قافلې تیر او کمان لاسو کې
هر یو ګذاریې په شیطان دی خدایه ویې ساتې

تمه له تا، توکل پر تا، نصرت لتانه غواړي
احتیاج وتاته په هر آن دی خدایه ویې ساتې

له بدو ستر ګو په امان شه دزلمیو کتار
څومره په نظم راروان دی خدایه ویې ساتې

الهامه ډېر یې دي ړنګ کړي یرغلګر برجونه
سم ګړندی لکه طوفان دی خدایه ویې ساتې